

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې
او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## څلورم ټولګی



**د چاپ کال: ۱۳۸۹ هـ . ش.**



**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې
او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## څلورم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۸۹ هـ . ش.**

## د کتاب د تألیف، څېړنې او تدقیق کمیټې

**لیکوالان:**

۱. د سرمؤلف مرستیال امین الله نژند د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنت علمي غړی.
۲. مؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف رئیس.

**تایید او مطالعه:**

**ملي شورا**

- د ولسي او مشرانو جرګو د دیني چارو، پوهنې او لوړو زده کړو د کمیسیونونو غړي.

**د څېړنې او تدقیق کمېټې:**

**کابل پوهنتون:**

- پوهندوی محمد رفیق رفیق د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د پښتو دیپارتمنت استاد.

**علومو اکاډمي:**

- سر څېړونکی عبدالواجد واجد د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز رئیس.

**د پوهنې وزارت:**

۱. ډاکټر احسان الله ناشر د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب د پراختا او درسي کتابونو د تالیف ریاست علمي غړی.
۲. الحاج عبدالاحد غزنیوال د پوهنې وزارت د علمي شورا کار کوونکی.
۳. د سر مؤلف مرستیال سید محمود کارګر د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی.
۴. دمؤلف مرستیاله فروزان خاموش د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنت علمي او مسلکي غړې.
۵. د مؤلف مرستیال محمد عزیز تحریک د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو د پیارتمنټ آمر.
۶. د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار د پښتو د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست دیپارتمنټ غړی.

**انځورګران:** نفیسه پوپلزۍ او محمد غالب الله یار.

**د محتویاتو، دینی، فرهنګي او سیاسي برخو د څېړنې او کره کتنې کمېټې:**

- دوکتور محمد یوسف نیازي د پوهنې وزارت سلاکار.
- محمد آصف ننګ د پوهنې وزارت د خپرونو او اطلاعاتو رئیس.

**څېړنې او تدقیق د څارنې کمیټه:**

- دکتور عبدالغفور غزنوي د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکزمعین.

دکمېټې رئیس

_ محمد صدیق پتمن د پوهنې وزارت تدریسي مرستیال. غړی.

_ د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستانی د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف رئیس. غړی.



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی     دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې     هر بچي يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی     د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو     د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي     پامېريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي     هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي     لکه لمر پر شنه آسمان

په سينه کې د آسيا به     لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مودی رهبر     وايو الله اکبر وايو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**گرانو استادانو، ښوونکو او زده کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختگ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کیږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي گټورې موضوعگانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه گرځیدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده‌کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې گډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده‌کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ گران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کېستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، د وطن دوستی د پاك حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرگندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډگر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو، او نورو ملگرو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردگ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# د کتاب لړلیک


| عنوانونه | مخ |
| --- | --- |
| ځلورم ټولګي ته ښه راغلاست | ۱ |
| نعت | ۳ |
| د علم زده کړه | ۵ |
| انسان | ۷ |
| بې پروايي | ۹ |
| ملالۍ | ۱۱ |
| کیسه | ۱۴ |
| د لمر ارزښت | ۱۶ |
| اوښ خبرې کوي | ۱۸ |
| بحري حيوانات | ۲۰ |
| ميرويس نيکه | ۲۲ |
| د کور پاک ساتل | ۲۴ |
| د ځنګلونو ګټې | ۲۶ |

| عنوانونه | مخ |
| --- | --- |
| د ډېرو سکاره | ۲۸ |
| د تمباکو زيانونه | ۳۰ |
| نوکانو ته پاملرنه | ۳۲ |
| حضرت عمر فاروق(رض) | ۳۴ |
| ګلان | ۳۶ |
| د مېوو د پوټکو د بې ځايه اچونې زيانونه | ۳۸ |
| راډيو | ۴۰ |
| د ژرندو ډولونه | ۴۲ |
| کاغذ او ګټې يې | ۴۴ |
| د لويانو خبرې | ۴۶ |
| سپينه ادې | ۴۸ |
| جرګه | ۵۰ |
| کيسۍ | ۵۲ |

| عنوانونه | مخ |
|---|---|
| د پلونو ارزښت | ۵٦ |
| د بخار ماشين | ۵۸ |
| احمد شاه بابا | ٦۰ |
| خوارې شيان | ٦۲ |
| زمورږ ورځني خوارږه | ٦۴ |
| رښتيا ويل | ٦٦ |
| سخاوت | ٦۸ |
| د مور خدمت | ۷۰ |
| نوم | ۷۲ |
| د چاپ صنعت | ۷۴ |
| د مفرد او جمع نوم | ۷۷ |
| همت | ۵۴ |
| نيکي کول | ۷۹ |
| متلونه | ۸۱ |
| د نوم ډولونه (خاص نوم) | ۸۳ |

| عنوانونه | مخ |
|---|---|
| وزر ماتی مرغه | ۸۵ |
| د زغم ښيګڼې | ۸۷ |
| د ناروغۍ ليک | ۸۹ |
| د اړتيا ليک | ۹۱ |
| څه چې وايې هغه به اورې | ۹۳ |
| افغانستان | ۹۵ |
| عام نوم | ۹۷ |
| کليوالي ژوند | ۹۹ |
| بشري ټولنه | ۱۰۱ |
| ضمير | ۱۰۳ |
| صفت | ۱۰۵ |
| مبتدا او خبر | ۱۰۷ |
| بی زحمته راحت نشته | ۱۰۹ |
| عدد | ۱۱۱ |
| | |

# لومړی لوست

# څلورم ټولګي ته ښه را غلاست




**موخه**: زده کوونکي متن سم ولولي، ويې ليکي دکتابونو د ساتلو وړتيا پيدا او په دې و پوهيږي چې دلوستلو او ليکلو څخه مخکې د بسم الله الرحمن الرحيم ويل زمونږ د بريالیتوب سبب ګرځي.

پوښتنې:

- کله چې په ټولګي کې غواړو په لوست پيل و کړ و څه بايد ووايو؟
- که غواړئ چې کتابونه مو ژر زاړه نه شي نو څه بايد وکړئ؟

د ټولګي د پيل لومړی ورځ وه. زده کوونکي په وار هر يو ټولګي ته ننوتل او دسلام په اچولوسره په خپلوځايونو کېناستل. د روغبړ څخه وروسته ښوونکي داسې وويل: ګرانو زده کوونکو ! څلورم ټولګي ته ښه راغلاست،خوشحاله يم چې سږکال هم تاسې په خپله زده کړه کې زيار او کـــوښښ و کړئ ترڅو بريالي شئ. بيا يې له دوی څخه هيله وکړه چـې تـختې ته و ګوري. ټولو تختې ته وکتل. ښوونکي پوښتنه و کړه چې د تختې په مخ څه ليکل شوي دي؟

زلمي لاس پورته کړ او ويې ويل: (بسم الله الرحمن الرحيم) ليکل شوی دی ښوونکي وويل چې ډ ېرښه، او خپلو خبرو ته يې داسې دوام ورکړ. خوږو زده کوونکو! تاسې پوهېږئ چې مونږ دخپلو کارونو لکه د درسونو لوستل ، ليکل، ډوډۍ خوړل اوداسې نورکارونه، د لوی او مهربان خدای ( جل جلاله) په نامه پيل کوو، نن چې ستاسو د لوست د پيل کولو لومړۍ ورځ ده ، خپل لوست د لوی او بخښونکي خدای (جل جلاله) په نوم سره پيل کوو. هيله ده چې لوی او بخښونکی خدای (جل جلاله) مونږ ته دا توان را په برخه کړي چې خپلې زده کړې په ښه توګه ترسره کړو. وروسته يې دپښتود څلورم ټولګي کتابونه چې نوي چاپ

شوي وو دوی ته وو یشل او ویې ویل: یوه خبره مو هېره نشي هغه داچې خپل کتابونه ښه وساتئ چې څیرې او ژړ زاړه نه شي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې لومړی دبسم الله الرحمن الرحیم د ګټو په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړي او هغوی دې وهڅوي چې دلوست لوستل، دوډۍ خوړل اوداسې نورښه کارونه دبسم الله الرحمن الرحیم په ویلو باندې پیل کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.

۲. زده کوونکي دې له یوبل سره دبسم الله الرحمن الرحیم د ګټو په هکله خبرې و کړي او بیا دې هر زده کوونکی دټولګي مخې ته را شي او د بسم الله الرحمن الرحیم دګټو په هکله دې لنډې خبرې و کړي.

۳. زده کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلوکتابچوکې په لنډو جملوسره وکاروي.
زیار(کوښښ)، پیل (شروع)

۴. په لاندې جملو کې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ!
دټولګي دپیل............ وه.
زده کوونکي په وار هر یو ټولګي ته ........... .

- ښوونکي پوښتنه و کړه چې د تختې په مخ څه ...........دي ؟
- ټولوپه یو غږ ځواب ورکړ ، چې ............. لیکل شوي دي؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- دلوست په مطلب پوه شول ؟
- نوې کلمې یې په جملوکې و کارولې؟
- زده کوونکي پوه شول چې دلوست دلوستلو، د ډوډۍ خوړلو څخه مخکې او داسې نور کارونه دبسم الله الرحمن الرحیم په ویلو سره ډېرثواب لري او بریالتوب مو په برخه کیږي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست مطلب په څوکرښو کې ولیکي.

# دوهم لوست

## نعت



**موخه**: د پيغمبر ستاينه او د دغه نظم سم لوستل او د نويو کلمو په معنا پوهېدل دي.

پوښتني:

- د حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) په هکله څه پوهيږئ؟ خبرې پرې وکړئ.
- څه فکر کوئ چې نعت د چا په هکله ويل کيږي؟

کـه صـورت د مـحـمـد نـه واى پـيـدا
پـيـدا کـړي بـه خـداى نـه وه دا دنـيـا

کل جهان د محمد په نوم پيدا شو
مـحـمـد دى د تـمـام جـهـان پيشوا

نبوت پـر مـحـمـد بـانـدې تـمـام شو
نـه شـتـه پـس لـه محمده انبيا

که صورت يې آخرين دى پيدا شوى
په معنا کې اولين دى ترهر چا

محمد د گمراهانو رهنما دى
محمد دى د ړندو د لاس عصا

کـه رښـاده پـيـروي د مـحـمـد ده
گنه نـه شته په جهان بله رښا

مـحـمـد د بېـچـاره و چـاره گـردى
مـحـمـد دى هـر دردمن لـره دوا

خداى يې مه گنه بېشکه چې بنده دى
نوريې کُل واړه صفات دي په رښتيا

رحمان بابا

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې دنعت متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې دنعت مطلب په نثر واړوي.

**د زده کوونکوفعالیتونه:**

١. زده کوونکي دې په وار دمتن لوستل شوې برخه،دکتاب له مخې په مناسب آواز ولولي.

٢. زده کوونکي دې په وار سره دنعت مطلب په خپله ژبه نورو ته ووایي.

٣. د لاندې لغتونو معنا دې له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو ترڅنګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | |
|---|---|
| پیشوا________ | چت |
| نبوت______ | پیغمبران |
| انبیا ______ | پیغمبري |
| عرش _____ | څوکۍ |
| کرسي _____ | لارښود |
| فاسق _____ | بدکار |
| پارسا _____ | پرهیزګار |

**ارزونه:**

- زده کوونکي شعر سم لوستلی شي؟
- د نعت په معنا او مفهوم پوه شول؟
- د نعت مطلب نوروته ویلی شي؟
- د نویولغتونو په معنا پوه شول؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې نوي لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروي.

# دریم لوست

# دعلم زده کړه

**موخه**: دمتن لوستل، لیکل، دعلم او پوهې د زده کړې په ارز ښت زده کوونکو ته معلومات ورکول دي.

پوښتنې:

- موږ ولې د علم زده کړه کوو؟
- تاسو دهغو خلکوچې علم او پوهنه یې زده کړې وي او دبې علمه خلکوترمنځ کوم توپیر کولی شئ؟
- تاسې ابوریحان پېژنئ؟ هغه څوک و؟



یوسپینږیری سړی د مرګ په حال په بستره کې پروت و. یوه ورځ د ده یو هوښیار او عالم ملګری دده پوښتنې ته ورغی. ناروغ سړي خپل ملګري ته وویل، دهغې علمي موضوع په اړه چې ما له تا څخه کوم معلومات غوښتی وو؟ هغه ملګري ورته وویل: ته خو اوس سخت ناروغ یې خدای (جل جلاله) خبردی که جوړشې! نو ددې موضوع پوهېدل به تاته ضروري شی نه وي.

ده ورته وویل: دابه بهتره وي چې پوه مړشم نه چې ناپوه او بل تا نه دي اوریدلي چې محمد (صلی الله علیه وسلم) فرمایلي دي ((دعلم طلب (زده کړه) پر هر مسلمان فرض ده.))

دا سپین ږیری ابوریحان البیروني و. چې د ېر علمي آثارله ده څخه را پاتې او نومونه یې دادي: د ستورو پېژندل، طبابت، ریاضیات، تاریخ، جغرافیه، د

درمل پېژندل د ملتونو ادب او دودونه چې اوس هم دنړۍ په زياتو برخو کې ورڅخه خلک ګټه اخلي. دانوميالی پوه دژوند ترپای پورې دپوهې په زده کړه بوخت و.

**ښو ونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې دلوست عنوان په تخته وليکي .
- ښوونکی دې متن ولولي، د علم د زده کړې په ارزښت او ګټودې خبرې وکړي.

**د زده کوونکوفعاليتونه:**

١. زده کوونکي دې متن ولولي. بيا دې دهر ګروپ څخه يو تن دلوست په مطلب خبرې وکړي.

٢. د لاندې جملو تش ځايونه دې د چوکاټ په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې وليکي.

| پوه ،جوړ، ده، ناپوه ، درمل، ابوريحان البيروني ناروغ، پوښتنه، را پاتې |
|---|

دابه بهتره وي چې................ مړشم.
له خپل ملګري څخه يې ...............وکړه.
ددې موضوع ......... به تاته څه ضروري شی نه وي .
دعلم زده کړه پرمسلمان له زانګوڅخه ترګوره فرض........ .
داسپين ږيری.................. دی.
چې ډېر علمي آثارله ده څخه ................. دي.

٣. لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ!
جوړ ، روغ، علم، پوهه

٤. پوښتنې:

- ابوريحان البيروني له خپل ملګري څخه دڅه شي پوښتنه وکړه اوهغه څه ورته وويل ؟
- **محمد** (صلی الله عليه وسلم) دعلم د زده کړې په هکله څه فرمايلي دي ؟
- د ابوريحان البيروني څخه کوم علمي آثار را پاتې دي ؟ نمونه يې واخلئ ؟

**ارزونه:**

- زده کوونکی متن سم لوستلی شي ؟
- دلوستل شوي متن په مطلب زده کوونکي خبرې کولی شي؟
- زده کوونکي دعلم د زده کړې په ارزښت ويوهېدل ؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې کلمې په جملوکې وکاروي .
علم ، آثار ، ناروغ ، زده کړه.

# څلورم لوست

# انسان

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل د انسان دارزښت اواهمیت په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکول دي.

پوښتنې:
- آیا ویلی شئ چې د انسان او حیوان ترمنځ څه توپیر دی؟
- انسان د څه شي په واسطه لوستل او لیکل زده کوي؟

لوی خدای (جل جلاله) انسان د یو عقل لرونکي موجود په توګه پیدا کړی دی.
انسان د عقل او فکر په واسطه کولی شي لوستل او لیکل زده کړي، پوهه او معلومات ترلاسه کړي، ځکه نو موږ وایو چې انسان یو داسې موجود دی چې عقل، فکر او ذکاوت لري. لوی خدای (جل جلاله) انسان په ډېر نېک ښایسته صورت او جوړښت سره پیدا کړی دی.
عقل او فکر انسان ته پر نورو ښارویو او ژویو فضیلت ور په برخه کوي. عقل د انسان د پرمختګ سبب ګرځي. انسان کولی شي چې د نورو ښارویو په څېر خواړه وخوري، او حرکت وکړي خو د عقل او فکر په واسطه د انسان او حیوان ترمنځ توپیرونه موجود دي.

- آیا انسان کولی شي چې دهوسۍ، آس، پړانګ په څېر چابک وځغلي؟
- آیا انسان کولی شي چې د کب په شان تر اوبو لاندې ژوند وکړي؟
- آیا انسان کولی شي چې د مرغانو په شان والوزي؟

د دې پوښتنو ځوابونه روښانه دي چې انسان دغه کارونه نه شي کولی، خو وې کړای شول چې موټر، الوتکه اوداسې نور شیان جوړ کړي چې تر هوسۍ، آس او پړانګ ګړندي وي.
انسان وکولی شول چې کښتۍ جوړه کړي چې په سمندر کې حرکت وکړي پس دا ټول شیان د انسان د عقل او فکر محصول دي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په مناسب آواز ولولي.
- د انسان د ښیګڼو او استعدادونو په اړه دې لنډ معلومات وړاندې کړي.
- لغتونه دې پر تخته ولیکي او معنا دې کړي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي.

۲. زده کوونکي دې د متن د مطلب په هکله یو د بل سره خبرې وکړي او بیا دې د هر ګروپ یو تن د انسان او حیوان د توپیر په هکله نوروته خپل معلومات وړاندې کړي.

۳. زده کوونکي دې په خپلوکتابچو کې د انسان او حیوان د توپیر په هکله څو جملې ولیکي.

۴. لاندې معنا شوي لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروئ!

څارویو: حیواناتو

ذکاوت: هوښیارتیا

فضیلت: اوچتوالی، بهتري

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د متن د مطلب په هکله خبرې کولی شي؟
- د انسان او حیوان د توپیر په هکله جملې لیکلی شي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلوکتابچو کې دانسان د پوهې په باره کې څو کرښې ولیکي.



# پنځم لوست

# بې پروايي

**موخه**: د متن لوستل، ليکل ، دبې پروايي په هکله معلومات او بې پروايي څخه د ځان ژغورلو په ښيګڼو باندې پوه شي.

پوښتنې:

- ستاسو په فکردلامبو وهلوله پاره بايد له څه ډول او بو څخه کار واخلو؟
- که چېرې سرى په چټلو او بوکې ولامبي څه به پېښ شي ؟

اجمل يو بې پرواهلک و. هروخت به يې د ناپاکو او بو په ځايو نو لکه ډنډ او ويالوکې لامبووهله . يوه ورځ چې دى له ښوونځي څخه رخصت شواو په کورکې يې ډوډۍ و خوړه بياد لوبو له پاره دباندې ووت . داجمل کورته نږدې يوه لويه وياله روانه وه .دغه وياله چې دکليو او کورو نو په منځ کې تېره شوې وه د کلي اوسېدونکو به دمېوو پو ټکي او خځلې ورا چولې. له دې کبله ددغې ويالې اوبه ډېرې چټلې اونا پاکه وې. دکلي هلکانو به پکې لامبل. اجمل پرته له دې چې ددغو ناپاکو او چټلو اوبو زيان ته پاملرنه وکړي خپل کالي يې وايستل اوپه لامبو وهلويې پيل وکړ. څو شېبې وروسته بيا انځرګل او بادام ګل چې داجمل ټولګيوال وو په لاره تېرېدل ګوري چې اجمل په وياله کې لامبي، په دې وخت کې بادام ګل خپل ملګري انځر ګل ته وويل: اجمل ته وګوره چې په چټلو اوناولواوبوکې لامبي، دومره نه پوهېږي چې په ناولو او بوکې لامبووهل روغتياته ډېر زيان رسوي او دخطرسره يې مخامخ کوي.
هغوى دواړه ډېر خواشيني اوخپه شول . څو ځانونه يې اجمل ته ونه ښودل. کله چې اجمل دلامبو وهلو څخه خلاص شو اوکورته ولاړ نودشپې وربانديې سخته تبه راغله. ټوله شپه يې دناروغۍ له کبله په ويښه تېره کړه. مور او پلار او دکورنۍ نور غړي يې ډېر خپه وو.

سهار و ختي يې روغتون ته بوتلو او د درملنې لاندې يې ونيو. د زيات كړاوله ګاللو څخه څو ورځې وروسته روغ شو ټولګيوال يې چې دهغه له ناروغۍ څخه خبر شول د اجمل د ليدو له پاره كورته ورغلل. هغه ډېر ډنګرشوى و. ورېښمين او نور ټولګيوالو يې وروسته له روغبړ څخه هغه ته وويل: وروره! دا ناروغي ستادبې پروايۍ اونا پوهۍ پايله ده. موږ اوتاسو ته ښوونكي ويلي و چې هېڅكله په ناولو اوبوكې مه لامبئ چې د ناروغۍ لامل ګرځي. اجمل چې داخبرې واو رېدې له ځان سره يې ژمنه وكړه چې بيا به هېڅكله په چټلو او نا پاكو او بوكې نه لامبم.

ښوونكي ته لارښوونه:

- متن په لوړ آواز ولولئ!
- دلوست دمطلب په هكله معلومات وړاندې كړئ.

د زده كوونكوفعاليتونه:

۱. متن دې په ګروپونوكې په لوړآواز ولولي.
۲. د متن مطلب دې دكيسې په توګه د هرګروپ يو تن په خپله ژبه نورو ټولګيوالوته ووايي.
۳. دلاندې كلمو متضاد شكل پيداكړئ او دكلمو ترڅنګ يې په خپلو كتابچو كې وليكئ .

ناپاكو: پاكو نږدې: ___________ روغتيا: __________

دباندې:__________ زيان: ___________ خواشيني: ________

ارزونه:

- آيا زده كوونكي متن لوستلى شي؟
- آيا دوى دمتن په مطلب پوه شول؟
- زده كوونكي دلوست مطلب دكيسې په توګه خپلوټولګيو الوته ويلى شي؟
- د وركړل شويو كلمو ضد يې پيدا كړاى شو؟

كورنۍ دنده:

لاندې كلمې په خپلوكتابچوكې په جملوكې وكاروئ!

ناولواوبو- خځلې- روغتيا- وياله- ډنډ

# شپږم لوست

# ملالۍ

**موخه**: زده کوونکي به متن ولوستلی شي، ولیکلی شي. ملالۍ و پېژني او په متن کې لنډی په نښه کړي .

پوښتني:
- ایاتاسې دهېواد د ملي قهرمانو ښځو د څو تنو نومونه اخیستی شئ؟
- څه فکرکوئ چې ملالۍ څوک ده؟

یــوه ورځ د تـاریــخ ښـوونکي پـه ټـولګي کـې د څـو ملـي اتلانـو پـه اړه خبـرې کـولې او د هغـو نو مونـه یې پـه تختـه لیکـل. پـه دې وخت کې ایمـل لاس پورتـه کړ اولـه ښوونکي څخـه یې وغوښـتل چـې د ملالـۍ پـه اړه معلومـات و ړانـدې کـړي. ښـوونکي و ویـل: ګرانـو زده کوونکـو! ملالـۍ زمـوږ دهېـواد یـوه ملـي نـامتواو زړه وره مېـرمن وه. کلـه چـې انګریزانـو زمـوږ پـه هېـواد یرغل وکړ او غوښتل یې چې ویې نیسي. زموږ مسلمان هېواد پالـه افغانـان د انګریزانـو ددې موخې نه خبر شول د هغوی د له منځه وړلو له پاره را غونډ شول او د مقـابلې تیـاری یـې و نیـو. انګریزان کله چې د میونـد دښتې تـه را ورسیـدل نو پـه نویـو وسلو بانـدې سمبال و خـو زمـوږ د هېـواد زړه ورو افغانـانو د ډېـرو سـاده شیـانو لکـه یـوم، تبرونـو او داسـې نـور، پـه لاس دمیونـد دښـتې تـه ورغلـل. پـه دې وخت کې هـوا ډېـره تـوده وه او د اوبـو چینـې او کـار یزونـه دښـمنانو نیولي وو. افغانان دخپلې خاورې دآزادۍ لـه پـاره پـه ډېر زړه و رتـوب جنګېـدل. نژدې و چې لـه

ماتې سره مخامخ شي. په دې وخت کې ملالۍ بيرغ په لاس کې د خپلو هېواد پالو افغانانو ترمنځ د دښمن په لور روانه شوه او په لوړ آوازيې داسې وويل:

که په ميوند کې شهيد نه شوې

خدايږو لاليه بې ننګۍ له دې ساتينه

ددې غږ په اورېدو سره دافغانانو احساسات راوپارېدل او په دښمن يې خونړى يرغل وکړ. هغوى يې تارومار کړل او برى يې ترلاسه کړ.



د زده کوونکوفعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولو لي.

۲. لاندې لغتونه چې معنا شوي دي تاسو يې په مناسبو جملو کې وکاروئ!

اتلانو – قهرمانانو

يرغل – حمله

چمتو– تيار

ډګر _ ميدان

۳. په خپلو کتابچو کې وليکئ چې لاندې لنډۍ چا او د څه له پاره ويلې ده؟

که په ميوند کې شهيد نه شوې

خدايږو لاليه بې ننګۍ له دې ساتينه

۴. پوښتنې:

- انګریزانو د څه له پاره زموږ په هېواد یرغل وکړ؟
- مېرمن ملالۍ په کوم وخت کې بیرغ په لاس کې ونیو؟ او ولې یې ونیو ؟
- ملالۍ کومه لنډۍ په لوړ آواز ویلې وه . او ولې یې ویلې وه ؟

۵. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

ملالۍ زموږ دهېواد ملي او زړه وره ________ وه .

هغه وخت چې زموږ په هېواد __________ یرغل وکړ.

غوښتل یې چې زموږ خپلواک هېواد _________.

سره له دې چې دښمن په نویو _______ سمبال و .

افغانان دخپلې خاورې د _________ له پاره په ډېر زړه ورتوب _____.

په دې وخت کې ملالۍ بیرغ په _____ کې دخپلوهېواد پالو افغانانو ترمنځ د دښمن په لور ___________ شوه .

ارزونه:

- زده کوونکي متن لو ستلی شي ؟
- د ملالۍ په هکله یې معلومات ترلاسه کړل؟
- زده کوونکي د متن مطلب په خپله ژبه ویلی شي ؟
- نوي لغتونه په جملو کې کارولی شي ؟
- لوستل شوې لنډۍ یې په یاد زده کړه؟ مطلب یې په نثر اړولی شي؟
- نیمګړې جملې یې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړې ؟

کورنۍ دنده:

لاندې کلمې په لنډ و جملو کې وکاروئ!

ملالۍ – افغانان – انګریزان – مېوند

# اووم لوست

## کیسه

**موخه:** چې زده کوونکي کیسه ولولي، ویې لیکي، دکیسې په مطلب پوه او مترادفې کلمې په متن کې په ګوته کړي.

پوښتنې:

- د کدو او چارمغز (غوز) د توپیر په هکله څوک خبرې کولی شي؟
- آیا ستاسو کومه کیسه زده ده؟ که مو زده وي خپلو ټولګیوالو ته یې ووایئ؟

یوه ورځ یو سړي د غنمو پنډ په شا کړی و، چې ډېر ستړی شو نو دچارمغز دونې لاندې یې دمه وکړه او پنډ یې په خپله خواکې کېښود. د چارمغز د ونې ترڅنګه یو پټی و په دې بڼ کې دکدو یو بوټی و چې ډېر غټ کدویې نیولی و. سړي چې په بوټي کې کدو اوپه ونه کې د چارمغز دانې ولیدلې نو ویې ویل: عجیبه دا ده چې هغه وړوکي بوټي دومره غټ کدو او دې لویې ونې دومره کوچني چارمغز نیولي دي. پکار خوداوه چې چارمغز دکوچني بوټي اوکدودلویې و نې حاصل وای. له دې وروسته یې سرپه خپله امسا کېښود چې دمه وکړي. ناڅاپه په دې وخت کې یې په سر یوشی راولوید. ګوري چې دا دچارمغز دانه وه. په دې وخت کې د سړي فکر بدل شواو ځان سره یې وویل: الحمدالله چې کدو د ونې حاصل نه دی که نه نو زما د سر ماغزه خو به یې را ایستلي وای!

ښوونکي ته لارښوونه:

- کیسه په لوړ آواز و لوله او نوي لغتونه په تخته ولیکه! له زده کوونکو څخه وغواړه چې د کلمو څخه په خپله جملې جوړې کړي.
- په متن کې هغو کلمو ته ځیر شه چې کرښه ورلاندې ایستل شوې. له زده کوونکو څخه دهرې کلمې مترادف شکل پوښتنه وکړه!
- د کیسې په مطلب خبرې وکړه!

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.

۲. زده کوونکي دې په خپلو ګرو پونوکې د کیسې په مطلب خبرې وکړي.بیادې دهر ګروپ یوکس دکیسې مطلب په خپله ژبه ووایي.

۳. په متن کې مترادفې کلمې پیدا کړئ او دهغه هم معنا په خپلو کتابچوکې ولیکئ .

۴. پوښتنې:

- یوه ورځ یو سړي چې دغنمو پنډیې په شا و دچارمغز د ونې لاندې څه کول؟
- دچارمغز ترخنګه یې دڅه شي پټې ولید؟
- سړي د چارمغز او دکدوپه هکله له ځان سره څه وویل؟

ارزونه:

- زده کوونکي کیسه سمه لوستلی شي ؟
- دکیسې په مطلب پوه شول؟
- نوموړې کیسه په خپله ژبه نورو ته ویلی شي؟
- په لوستل شوي متن کې یې مترادفې کلمې پیدا او د کلمو هم معنا بڼې یې ولیکلې؟

کورنۍ دنده:

لوستل شوې کیسه په یاد زده کړئ اوخپلو خویندو او وروڼو ته یې ووایئ!



# اتم لوست

## دلمر ارزښت

**موخه**: دلمر په ارزښت پوهېدل او د لمر ځخه په ژوند کې ګټه اخیستل دي.

پوښتنې:

- څه فکر کوئ چې دلمر څخه څه ګټې اخلو؟
- که چېرې دلمر رڼا او تودو خه ځمکې ته را ونه رسیږي، څه پېښیږي؟

لمر نه یوازې د رڼا او تودوخې سر چینه ده، بلکې د څارویو ، الوتو نکو، غلو، سبو ، مېوو او انسانانو په ژوندانه کې هم ډېر ارزښت لري.

که دلمر رڼا او تو دوخه ځمکې ته را ونه رسیږي . نو انسانان، څاروي، الوتو نکي اونباتات مري . دمثال په توګه دلمرد رڼا او تودوخې دشتوالي په صورت کې غلې، مېوې ، سابه او نور بوټي زرغونیږي. اوسمه وده کوي. همدارنګه پوهیږوچې دانسانانو خواړه له سبو، غلو، مېوو، غوښو، شیدو، هګیو، کوچو او داسې نورو څخه لاس ته راځي. که چېرې بوټې زرغون نه شي اوسمه و ده ونکړي دهغه څخه حاصل نشو اخیستلی.

سربېره پردې دلمر په تودوخه ځینې میکروبونه له منځه ځي . همدا راز نن ورځ زیات شمېر پر مختللي هېواد ونه د اوبو او د خونو د ګرمولو له پاره دلمر له تودوخې څخه ګټه اخلي اوهم برېښنا ورڅخه په لاس راوړي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې دمتن عنوان په تخته ولیکي او متن دې په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې دلمر دګټو او ارزښت په هکله خبرې وکړي او نوې کلمې دې دتختې په مخ ولیکي او معنادې کړي.
- ښوونکی دې د لوست څو کلمې په تخته ولیکي. زده کوونکي دې وار په وار تختې ته را وغواړي. چې د یوې کلمې مترادفه بڼه د کلمې تر څنګه ولیکي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې یو له بل سره متن ولولي او خپلې ستونزې دې اوارې کړي.

۲. زده کوونکي دې په خپلو کړ ویونوکې دلاندې کلمو مترادف شکل له چوکاټ څخه پیدا او بیا دې د کلمو ترڅنګ په خپلو کتابچوکې ولیکي.

| | | |
|---|---|---|
| سرچینه ................ | زرغون .................... | شین، برق ، |
| تودوخه .............. | بریښنا ................. | منبع، حرارت |

۳. څو زده کو ونکي دې دلمر د ګټو په هکله یوه یوه جمله ووایي او ښوونکی دې په تخته ولیکي.

۴. دلاندې جملو د تشو ځایونو کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

لمر نه یو ازې دا چې د رڼا او ______ سرچینه ده ، بلکې د څارویو، الو تونکو، غلو، سبو ، مېوو، او ______ په ژوندانه کې هم ډېره ګټه لري.

همدا را ز نـن ورځ زیـات شـمېر پرمختللي ________ داوبـو او دخونـو د ګرمولـو لـه پـاره د____ لـه تودوخې څخه ګټه اخلي اوهم _____ ور څخه په لاس را وړي.

ارزونه:

- زده کوونکو دلمرد ارزښت اوګټو په هکله پوهه ترلاسه کړه؟
- زده کوونکي دلوست متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي دکلمو مترادف کلمې پېژني؟
- زده کوونکو د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړل؟

کورنۍ دنده:

لاندې کلمې په لنډو جملوکې وکا روئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ!

لمر - تودوخه - بریښنا - روغتیا



# نهم لوست

## اوښ خبرې کوي

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د اوښ د کيسې په ادبي بڼه او د اوښ زور باندې د زده‌کوونکو پوهول دي.

پوښتنې:

- اوښ مو ليدلی دی ويلی شئ چې اوښ څه ډول ځاروی دی؟
- د اوښ په اړوند مو کومه کيسه اورېدلې ده؟

ما چې وينئ کولی شم ډېره موده په صحرا او د ښتو کې مزل وکړم، بې له دې چې اوبه وڅښم او يا خواړه وخورم. کله چې په بېديا او دښتو کې تونده باد ولګېږي او له ځانه سره دوړې په هوا پورته کړي. بيا نو هېڅوک نه شي کولی چې ددغه باد په وړاندې ځان ټينګ کړي او په لار ولاړ شي. خو زه کولی شم چې ددې باد او دوړو ترمنځ خپل تګ ته دوام ورکړم. ښايي پوښتنه وکړئ چې څنګه کولی شم ډېره موده بې له څښلو او خوړلو څخه مزل وکړم؟ تاسې زما شاته پام وکړئ! يوه راوتلې برخه وينئ. چې دې برخې ته (بوکان) وايي. زما همدې ځای کې يوه اندازه وازده ده. کله چې زه خواړه ونه خورم، بدن مې له دې وازدو څخه ګټه اخلي او پياوړی کېږي. څرنګه چې لږ خولې کېږم نو له همدې امله لږتږی کېږم.

او بله دا چې زما د پښو تلې پلنې او نرمې دي چې په خاورو کې نه ډوبيږي. همدا راز زه ځواکمنې سترګې اوګڼ باڼه لرم، که چېرې يوه سترګه وتړم بيا هم کولی شم چې ووينم او په لاره لاړ شم. زه کولی شم چې خپله پزه بنده کړم له همدې امله د توپان او بادونو په وخت کې خاوره او دوړه زما سترګو او پزې ته نه ننوځي اوس پوه شوئ چې لوی خدای (جل جلاله) زه څه ډول پيدا کړي يم؟

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې زده کوونکو ته متن په لوړ آواز ولولي.
- د متن په مطلب دې پوره رڼا واچوي.
- ښوونکی دې له متن څخه پر زده کوونکو باندې د املا کار وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. متن دې څو زده کوونکي په وار سره په لوړ آواز ولولي.

۲. لاندې نوې کلمې او ترکیبونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ بیا د هرې کلمې او ترکیب له پاره څو جملې جوړې کړئ!

(ډېره موده (ډېر وخت) پلي (پیاده) پیاوړی (قوي) زغملی شم (تېرولی شم) بوکان داوښ دشا را وتلي برخې ته وایي.

۳. پوښتنې:

- په کیسه کې اوښ د خپلو بوکانو په اړوند کومه ګټه بیانوي؟
- د خپلو خولو او اوبو په اړوند څه وایي؟
- ولې د اوښانو پښې په خاورو کې نه ډوبیږي؟
- ولې اوښ کولی شي د توند باد او توپان په وخت کې تګ ته دوام ورکولی شي؟

۴. لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ.

ما چې وینئ . . . شم ډېره موده په صحرا او د ښتو کې مزل وکړم.

ښایي پوښتنه وکړئ چې څنګه کولی شم ډېره موده بې له . . . څخه مزل وکړم؟

تاسې زما ___________ ته پام وکړئ!

یوه راوتلې برخه _________ .

کله چې زه خواړه ونه خورم بدن مې له دې _________ څخه ګټه اخلي.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی او لیکلی شي؟
- د متن په مطلب پوه شول؟
- د لوستل شوې کیسې مطلب په خپله ژبه نورو ټولګیوالو ته ویلی شي؟
- له کلمو او ترکیبونو څخه یوه بشپړه جمله جوړ ولی شي؟
- پوښتنو ته تر کومه ځایه سم ځوابونه ورکولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

داوښ په هکله درې کرښې معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

# لسم لوست

# بحري ژوي

**موخه**: د متن لوستل، ليکل ، د بحري ژوو ( حيواناتو ) په هکله معلومات ورکول دي.

پوښتنې:

- بحري حيوانات پېژنئ؟ نومونه يې واخلئ!
- کوم حيوانات هم په اوبو کې او هم په وچه ژوند کوي؟

د ځمکې زياته برخه په اوبو پو ښل شوې ده. په مليونونو حيوانات په سيندونو او دريابونو کې ژوند کوي. له دغو ژوو څخه ځينې بيا په وچه کې هم ژوند کولی شي لکه چونگښې، تمساح، ماران او ځينې الوتونکي مرغان.

همدا راز ځينې بوټي هم شته چې د بحر په تل کې ژوند کوي. زياتره کبان او بحري تي لرونکي حيوانات لکه: وېل (whale) د لکۍ په خوزولو سره د بحر په يوه خوا او بله خوا گرځي را گرځي. د لامبو وهلو په وخت کې له خپلو وزرونو څخه کار اخلي، د ځينو وړوکبانو د غوښو، هډوکو او پوستکو څخه خلک په ورځني ژوند کې گټه اخلي.



**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د بحري حیواناتو د ګټو په اړه دې لنډ معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.
۲. د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

د ځمکې زیا ته برخه په اوبو پوښل ____________.
په ملیونونو____ په سیندونو او دریابونو کې ژوند کوي.

۳. لاندې جملې د متن له مخې د شمیرې په لیکلو سره ترتیب کړئ.

**الف:** په ملیونونو حیوانات په سیندونو او دریابونو کې ژوند کوي.

**ب:** د ځمکې زیاتره برخه په اوبو پوښل شوې ده.

**ج:** له دغو ژوو څخه ځینې بیا په وچه کې هم ژوند کولی شي لکه چونګښې، تمساح، ماران او ځینی الوتونکي مرغان.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- ځینې بحري حیوانات یې و پیژندل؟
- د بحري حیواناتو د ګټو په اړه خبرې کولی شي؟
- د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د څو بحري حیواناتو نومونه ولیکي او بیا دې د هغو ګټو په اړه څو جملې ولیکي.

# یوو لسم لوست

# میرویس نیکه



**موخه**:دمتن سم لوستل، لیکل ، د میرویس نیکه پېژندل اود هغه دخدمتونو په اړه معلومات .ورکول دي.

پوښتنې:

- ویلی شئ چې میرویس نیکه څوک دی؟
- میرویس نیکه خلکو ته د څه شي بلنه ورکړه؟

میرویس نیکه دافغانانو یو پوه او زړه سوانده مشرو. ده له ټولو افغانانو سره مینه درلوده. دخپل هېواد دخپلواکۍ دګټلوپه اړه یې فکرکاوه. غوښتل یې چې افغانان په یووالي سره ژوند وکړي .

کله چې هغه د حج داداکولو له پاره بیت الله شریف ته ولاړ او بېرته بیا کندهار ته راستون شو نوله خلکو او مشرانو سره یې وکتل. خلکوته یې دخپلو اکۍ دبېرته ګټلو له پاره دپاڅون بلنه ورکړه. ټولو وګړو دهغه مشري و منله.

میرویس نیکه له خپل مېړني ولس سره یوځای خپل هېواد د پردو له لاس څخه خلاص کړ. دخپلو اکۍ تر ګټلو وروسته یې دهېواد د ودانولو له پاره د قدر وړ خدمتونه وکړل. په خلکوکې یې ډېر پلویان پیداکړل .

میرویس نیکه دخپلې واکمنۍ تر پایه دیوملي مشر په توګه کاروکړ. کله چې مړشو خلکوپه ډېر درناوي سره خاوروته وسپاره. دده قبردقندهاردښار په کوکران کې دی.

### ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې د تېر لوست پوښتنې وکړي.
- ښـوونکی دې د مـتن لوسـت ولـولي او نـوي کلمـې دې معنـا او بیـا دې د میرویس نیکه په هکله د زده کوونکو له سویې سره سم معلومات وړاندې کړي.
- ښوونکی دې د متن د څو جملو املا زده کوونکو ته ووايي.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې متن په چوپتیا سره ولولي او دمیرویس نیکه پـه هکله دې يو له بل سره خبرې وکړي. بیـا دې د هر ګروپ یـو تـن د میـرویس نیکـه پـه هکلـه نـورو تـه معلومات ورکړي.

٢. د لاندې جملو تش ځايونه د چوکاټ په مناسبو کلمو سره ډک کړئ!

میرویس نیکه زموږ د هېواد ___ او _______ واکمن و.
مور يې نومیالۍ مېرمن _________ نومېده.
میرویس نیکه د افغانانو یو پوه او _________ مشرو.

| |
|---|
| نومیالی |
| نازوانا |
| ملي مشر |
| زړه سواند |

### ارزونه:

- ایا زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- ایا د میرویس نیکه په هکله يې معلومات ترلاسه کړل؟
- ایا زده کوونکو وکولی شول چې د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د میرویس نیکه په هکله څو کرښې ولیکي.

# دولسم لوست

# د کور پاک ساتل

**موخه**: د متن سم لوستل، د کور د پاک ساتنې او روغتیا ساتنې په هکله معلومات ترلاسه کول دي.

پوښتنې:

- چاپیریال څه ته وايي؟
- په يوه کورنۍ کې څوک ژوند کوي؟
- د کور په پاکوالي او روغتیا ساتنه کې ستاسو ونډه څه شی ده؟

ټول هغه شیان چې زموږ په شاو خوا کې موجود دي د چاپیریال په نوم یادیږي. د انسان د ژوند لومړنی چاپیریال د هغه خپل کور دی. هر چاته خپل کور ډېرګران دی. کور د کورنۍ د ټولو غړو د اوسېدو ګډ ځای دی. زه د خپل کور پاکوالي ته ډېره پاملرنه کوم. زما خویندې او وروڼه هم د کور په پاکۍ کې پوره پاملرنه کوي. د دې له پاره چې زموږ روغتیا ښه وي او د ناروغیو مخنیوی مو کړی وي ښه به داوي چې د کور پاکوالي ته ډېره پاملرنه وکړو.

په حدیث شریف کې راغلي دي (پاکوالی د ایمان یوه برخه ده) د دې له پاره چې بدن مو روغ وي په کار ده چې د خپل کورد شاوخواچاپېریال د پاک ساتلو له پاره لاندې ټکي په پام کې ونیسو:

١. کوټه باید پاکه هوا او د لمر رڼا ورسیږي.
٢. د کور انګړ باید پاک او سوتره وساتو.
٣. خځلې او دمېوو پوټکي باید په ټاکلي ځای کې واچول شي او د بې ځایه غورځولو څخه يې ډډه وکړو.
۴. ماشومان باید داسې روزل‌دي شي چې د تشناب (بیت الخلا) له راتګ څخه وروسته خپل لاسونه په صابون او پاکو او بو ومینځي.
۵. څاروي او کورني مرغان باید له کور څخه لېرې په یوه ټاکلي ځای کې وساتل شي.
٦. د اغوستلو کالي، کمپلې شړۍ، بړستنې، روجايي ګانې، توشکې، د کور پرشونه باید پاک او سوتره وساتل شي او په هره اونۍ کې يې لږ تر لږه یو ځلي د لمر تو دوخې ته واچوو تر څو مېکروبونه يې له منځه لاړ شي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د لوست د موضوع په هکله دې خبرې وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او په وار سره دې د لوست په مطلب خبرې وکړي.

۲. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

ټول هغه شیان چې زموږ په شاوخوا کې موجود دي د ____________ په نوم یادیږي.

د انسان د ژوند لومړنی چاپېریال د هغه خپل ____________ دی.

کور د کورنۍ دغړو د ________________ ځای دی.

زه د خپل کور پاکوالي ته ډېره ____________ کوم.

پاکوالی د ____________ یوه برخه ده.

۳. پوښتنې:

- کور او کوټو ته پاکه هوا او د لمر رڼا څه ګټه لري؟
- خځلې او دمېوو پوټکي په کوم ځای کې واچول شي او ولې؟
- ماشومان او لویان له تېتې څخه وروسته خپل لاسونه ولې په صابون او پاکو اوبو مینځي؟
- څاروي او کورني مرغان د څه له پاره د کوټو څخه لېرې ساتل کیږي؟
- مورې خپل توشکونه او کالي ولې لمر ته اچوو؟

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- د متن په مطلب پوه او خبرې پرې کولی شي؟
- زده کوونکو نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړای شوې؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د پاکوالي د ګټو په هکله څو جملې ولیکي.



## دیارلسم لوست

# د ځنګلونو ګټې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د ځنګلونو د ګټو او ارزښت په هکله معلومات او ځنګلونو ته پاملرنه ده.

پوښتنې:

- آیا ویلی شئ چې زموږ د هېواد په کومو ولایتونو کې ځنګلونه شته دی؟
- له ځنګلونو څخه څه شی لاس ته راځي؟
- د ځنګلونو پاملرنه او هغو ته وده ورکول څه ګټې لري؟

ځنګلونه دهېواد ارزښتمني سرچینې دي، د ځنګلونو پراخوالی، ساتنه او له ځنګلونو څخه سمه ګټه اخیستل د هېواد اقتصاد پیاوړی کوي. د ځنګلونو شته والی د چاپیریال په سمسورتیا او دهوا په پاکوالي او دښکلي نندارځي په جوړښت کې خورا غوره رول لري.

ځنګلونه په سیمو کې د سېلاب او توپان د رامنځ ته کیدو په وړاندې زیات ارزښت لري. همدا راز ځنګلونه د الوتونکو مرغانو او ژوو دشته والي او زیاتېدو سبب ګرځي. له ځنګلونو څخه غوره محصولات لکه دودانیو او سون لرګي ترلاسه کیږي او څرځایونه لري. زموږ د هېواد ځنګلونه د پکتیا، کونړ، ننګرهار، لغمان، سمنګان، بادغیس او دهرات په ولایتونو کې دي. د سمنګان، بادغیس او دهرات په ولایتونو کې د پستې ځنګلونه هم شته. د دغو ځنګلونو ځینې ونې بې مېوې دي. نو موږ ته په کار ده چې د خدای (جل جلاله) دغه لوی او وړیا نعمت او ملي شتمنۍ ته پاملرنه وکړو او د لازیاتې ودې او روزنې په خاطر یې دتل له پاره دځان دنده وبولو.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې دځنګلونو د ګټو په هکله خبرې وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو یو تن د ټولګي مخ کې د ځنګلونو د ګټو په اړه معلومات ورکړي.

۲.

| نوي لغتونه | معنا |
|---|---|
| سمسورتیا | تازه ګي او شین والی |
| چاپیریال | شاوخوا |
| خورا | ډېر |
| پراخوالی | ارتوالی |
| شتمنی | پانګه، دارایي |

۳. پوښتنې:

- له ځنګلونو څخه کومې ګټې اخلو؟
- زموږ په کومو ولایاتو کې ځنګلونه شته دی؟
- که چیرې ځنګلونه نه وي د چاپیریال هوا به څنګه وي؟
- مرغان او الوتونکي چیرې ژوند کوي؟

۴. د لاندې کلمو سم شکل په ګوته کړئ او بیا یې په خپلوکتابچو کې ولیکئ!

الف: زنګلونه ځنګلونه

ب: اقتصاد اقتساد

ج: جوړښت جوربنت

د: ښکولي ښکلي

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د ځنګلونو د ګټو او ارزښت په اړه یې معلومات ترلاسه کړل؟
- دوی د ځنګلونو په اړه خبرې کولی شي؟
- د نویو کلمو په معنا پوه شول؟ او پوښتنو ته یې مناسب ځوابونه وویلی شول؟

کورنی دنده:

زده کوونکي دې د ځنګلونو د ګټو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# څوارلسم لوست

# د ډبرو سکاره



**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د ډبرو د سکرو په هکله معلومات او دهغه په ګټه او ارزښت پوهېدل دي.

پوښتنې:

- آيا تاسو د ډبرو سکاره ليدلي دي؟
- د ډبرو سکاره له کوم ځای څخه لاس ته راځي؟
- سکاره له څه شي څخه جوړېږي؟
- خلک د ډبرو له سکرو څخه څه ګټه اخلي؟

د ډبرو سکاره يوه تور رنګې کلکه ماده ده چې ترځمکې لاندې پيدا کيږي..د ډبرو سکاره زموږ د ګران هېواد افغانستان په ډېرو ولاياتو لکه هرات، باميان، پروان، بغلان او بدخشان کې پيدا کيږي.
زموږ هېواد وال په ژمي کې د کورونو او دفترونو په تودولو کې له دې سکرو څخه کار اخلي. په فابريکو کې د سون د توکو په څېر کارول کيږي. موږ بايد کوښښ وکړو چې د ډبرو له سکرو څخه په صنعت کې او هم د سون د موادو په څېر له هغو څخه کار واخلو، دا کار له يوې خوا اقتصادي دی. او له بلې خوا د ځنګلونو په ساتنه کې هم مرسته کوي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکي دې دلوست سرلیک په تخته ولیکي او لوست دې په لوړ آواز ولولي.
- نوي لغتونه دې معنا او د ډبرو سکرو په هکله دې معلومات ور کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او بیا دې د هر ګروپ یو زده کوونکی د خپل ګروپ په مشرۍ د متن په مطلب خبرې وکړي.

۲. د لاندې کلمو مترادف له چوکاټ څخه پیدا کړئ او د کلمو تر څنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

فشار _______________

هېواد ______________

تودول _____________

سون _______________

زور، د سوځېدو مواد،
وطن، ګرمول

۳. لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

د ډبرو سکاره یوه تور رنګې کلکه ماده _______________________ .

زموږ _________ په ژمي کې د کورونو او دفترونو په _________ کې له دې سکرو څخه _________ اخلي او په فابریکو کې د _________ د توکو په ښېرکارول _________ .

موږ باید _____________ وکړو چې د سکرو له ډبرو څخه په صنعت کې او هم د سون د موادو په څېر له هغو څخه کار _____________ .

د ا ___________ له یوې خوا اقتصادي دی او __________ له بلې خوا د ځنګلونو په ساتنه کې مرسته _____________ .

۴. پوښتنې:

- د ډبرو سکاره له څه شي څخه او په څه ډول لاس ته راځي؟
- د ډبرو سکاره زموږ د هېواد په کومو ولایاتو کې پیدا کېږي؟

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- زده کوونکو د ډبرو د پیدا ایښت په هکله معلومات پیدا کړل؟
- زده کوونکي د ډبرو سکرو په هکله معلومات ور کولی شي؟
- زده کوونکي د سون د موادو په ارزښت پوه شول؟

کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې د ډبرو سکرو په اړه څو جملې ولیکئ!

# پنځلسم لوست

## د تمباکو زیانونه



**موخه**: د متن لوستل، لیکل د تمباکو، نسوار او چلم د زیانونو په هکله معلومات ورکول دي.

پوښتنې:

- داسې څوک پېژنئ چې سګرټ ، نسوار اویا چلم څکوي؟
- څوک چې سګرټ ، نسوارا و یا چلم څکوي دهغو کسانو روغتیایي حال به څنګه وي؟

تمباکو هم د نېشه یي توکو څخه یو زیان رسوونکی بوټی دی . دا دخلکو ترمنځ په بېلا بېلو ډولونو کارول کېږي لکه سګرټ ، چلم او نسوار. تمباکو که په هره بڼه وکارول شي روغتیا ته تاوان رسوي.

د ساه اخیستو له لارې د انسان سږوته دخپل لوګي په وسیله زیانونه اړوي.

نسوار د خولې او معدې له لارې انسان ته بېلابېلې ناروغۍ پیداکوي لکه دخولې بدبویي دغاښونو توربدل اودمعدې ناروغي.

سربېره پر دې چې په خپله عملي کسانوته زیان رسوي دنور وخلکو دناروغۍ لامل کیږي. که یو سګرټ او چلم څکوونکی د نورو خلکو په منځ کې خپل د خولې لو ګی نوروته ولېږدوي د ناروغۍ سبب کیږي ځکه چې پورتني توکي په ډېرې آسانۍ دساه له لارې اخیستل کیږي همدا راز دغه توکي مالي زیانو نه هم لري لکه دسګرټ اوچلم په څکولو سره عملي کسان خپلې یوه اندازه پېسې بې ځایه لګوي،که هغه پیسې په مېوواو خوړو ولګوي کیدای شي یو غښتلی انسان ور څخه جوړ شي. هغه کسان چې دغه بد عملونه لري لازمه ده چې خوشې یې کړي ترڅوبدن یې په ناروغیواخته نه شي.

لغتونه او معناګانې:

لامل، سبب سږو، ششونه غښتلی، قوي

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- متن په لوړآو ازولولئ!
- دتمباکو ، سګرټو، نسوارو اوچلم په زیانونو خبرې وکړئ.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي اودمتن د موضوع په هکله دې په وارسره خبرې وکړي .

۲. :پوښتنې:

- څوک چې سګرټ څکوي خلک ولې ترې کرکه کوي؟
- نسوارا چول کوم زیانونه لري؟
- دسګرټ او چلم څکول کوم اقتصادي زیانونه لري؟

۳. دچوکاټ څخه مناسب ادوات دجملو په مناسبوځایونو کې وکاروئ.

| لـه، څخـه، او ، او، پـه چې |
| --- |

تمباکوهم دنشه يي توکو ____ منځ ______ يو زيان رسوونکی بوټی دی.

سګرټ ____ چلم دساه دلاري د انسان سږوته زیانونه اړوي.

نسوار دخولې _____ معدې دلارې انسان ته بېلابېلې ناروغۍ پیداکوي.

سربیره _____ دې ______ په خپله عملیا نوته زیانونه رسوي دنورو خلکو دناروغۍ سبب کیږي.

۴. زده کوونکي دې د سګرټو د زیانونو په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**ارزونه:**

- آیا زده کوونکي متن لوستلی شي ؟
- دمتن په مطلب پوه شوي دي ؟
- دلوست مطلب په خپله ژبه نورو ټولګیوالو ته ویلی شي؟
- زده کوونکو پوښتنوته سم اومناسب ځوابونه وویل؟
- آیا دوی دلوست مطلب په څو کرښوکې له یاده لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

دهرې کلمې له پاره په خپلو کتابچو کې دوه دوه مناسبې جملې ولیکئ!

سګرټ ، نسوار ، چلم ، تمباکو ، زیان ،روغتیا

# شپاړسم لوست

# نوکانو ته پاملرنه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل د نوکانو غوڅولو او پاک ساتنې ته پاملرنه او په متن کې دوروستاړي په نښه کول دي.

**پوښتنې**:

- موږ د خپلو نوکانو پاک ساتلو ته څه ډول پاملرنه کولی شو؟
- که چېرې موږ خپل نوکان غوڅ نه کړو او پاک يې و نه ساتو څه به پېښ شي؟

هره ورځ زموږ نوکان يو څه اوږدېږي، چې لږ تر لږه په اونۍ کې يو يا دوه ځلې د نوکانو لنډول د روغتيا له پاره ګټور کار ګڼل کېږي. ځکه نوکان د ګوتو په سرونو کې دي. د همدغو ګوتو او لاسونو په مرسته موږ خپل کارونه تر سره کوو، لکه ډوډۍ خورو، لیکل او نور زيات کارونه کوو. که چېرې زموږ نوکان له اندازې څخه اوږده شي بيا په هغو کې ځينې شيان بندېږي چې بد ښکاري او هم زموږ د ناروغۍ لامل ګرځي.

له همدې امله بايد خپلو نوکانو ته پاملرنه وکړو خو هېر نه کړو چې ځينې ماشومان اولويان خپل نوکان په غاښونو پرې کوي. دغه کار په روغتيا ناوړه اغېزه کوي.

لغتونه او معناګانې:

پرې کول، قطع کول ناوړه، نامناسب

ښوونکي ته لارښوونه:

- د متن عنوان په تخته وليکئ او لوست په لوړ آواز ولولئ!
- د زده کوونکو فعاليتونه و څارئ او لارښوونه وکړئ!

## د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې متن د کتاب له مخې ولولي او په خپلو ډلو کې دې د متن په مطلب خبرې وکړي.

٢. لاندې نيمګړې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو بشپړې کړئ!

لږ ترلږه په اونۍ کې يو ځلي خپل ______ پرې کړئ!

که چېرې زموږ نوکان له ______ څخه اوږده شي بيا په هغو کې ځينې ______ بنديږي.

چې بد ښکاري او هم زموږ د __________ لامل ګرځي.

ځينې ماشومان او لويان خپل نوکان په ______ پرې کوي چې د روغتيا له پلوه دغه ډول

کار ډېر ___________ ګڼل شوی دی.

٣. په لاندې کلمو کې هغه کلمې په نښه کړئ چې جمع يې په «ان» جوړيږي.

(نوک، ګوته، لاس، ماشوم، غاښ، لوی)

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي په دې وپوهيدل چې خپل نوکان پاک وساتي او په څه شي يې پرې کړي؟
- زده کوونکو نيمګړې جملې په مناسبو کلمو بشپړې کړې؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې په جملو کې وکاروي.

نوکان، لاسونه، ډوډۍ، ناروغۍ، غاښونه، پاک

# اوه لسم لوست

# حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه)

**موخه:** دحضرت عمرفاروق (رض) پېژندل او په دې لوست کې د مرکبو کلمو په نښه کول دي.

پوښتنې:

- آیا حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) پېژنئ ؟
- دحضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په یارانوکې څوک دفاروق لقب لري او ولې ؟
- د حضرت ابو بکر صدیق (رضی الله عنه) څخه وروسته څوک د مسلمانانو مشر وټاکل شو؟

**حضرت عمرفاروق** (رضی الله عنه) **دحضرت محمد** (صلی الله علیه وسلم) **دوهم یار دی. اصلي نوم یې عمر د پلار نوم یې خطاب دی . دحضرت محمد** (صلی الله علیه وسلم) له خوا ورته د فاروق لقب ورکړشوی او په (۲۹) کلنۍ کې داسلام په مبارک دین مشرف شو .

حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) د حضرت ابوبکر صدیق (رضی الله عنه) په شان خپل زیات وخت د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په خدمت او ملګرتیا کې تېر کړی دی.

کوم وخت چې حضرت عمرفاروق (رض) داسلام په مبارک دین مشرف شو نود اسلام مبارک دین ډېر زیات قوت وموند. همدا راز حضرت عمر فاروق (رضی الله عنه) ډېرې غزاګانې کړې دي او الله ( جل جلاله ) زیات بریالیتوبونه ور په برخه کړي دي. د خپل خلافت په موده کې یې داسې ستراسلامي کارونه کړي دي چې په نړۍ کې ساری نه لري . همدا ډول حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) ډېر هېوادونه فتح کړي دي. خلک یې داسلام مبارک دین ته را بللي دي. په عدالت کې نړیوال شهرت لري. لس کاله، شپږ میاشتې اوپنځه ورځې دمسلمانانو خلیفه و او دهجرت په ۲۴ کال د (۲۳) کلنۍ په عمر د سهارد لمانځه په وخت کې د ابولولو نومي سړي له خوا ټپي اوبیا په شهادت ورسېد.

---

## لغتونه او معناګانې

فاروق- د ښه او بد توپیرکوونکی

خلیفه- ځایناستی، د پیغمبر جانشین

ټپي- زخمي

## ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي .
- دحضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) په هکله دې د زده کوونکو له سويې سره سم لنډ معلومات ورکړي!
- دمتن لغتونه دې په تخته وليکي او زده کوونکي دې معنا کړي.

## د زده کوونکوفعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې د لاندنيو لغتونو څخه مناسبې جملې جوړې کړي.
(فاروق ، صديق ، مشرف ، برياليتوبونه ، خلاقت ، نړۍ)

۲. زده کوونکي دې په ګروپونو وويشل شي او هر ګروپ دې يوه برخه په چوپتيا مطالعه کړي. بيا دې مطلب نورو ته ووايي.

۳. پوښتني:
- حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) د حضرت محمد څووم يار دی؟
- حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) په څوکلنۍ کې د اسلام په مبارک دين مشرف شو؟
- حضرت عمرفاروق (رضی الله عنه) له کوم خليفه څخه وروسته دمسلمانانو مشروتياکل شو؟
- حضرت عمرفاورق (رضی الله عنه) څومره وخت دمسلمانانو خليفه و؟

۴. په لاندې کلموکې مرکبې کلمې په ګوته کړئ او بيايې په خپلوکتابچو کې وليکئ.په جملو کې يې سمې وکاروئ!

ابوبکرصديق، عمرفاروق ، حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) خليفه

## ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دحضرت عمرفاروق (رض) په هکله دټولګي په مخکې خبرې کولی شي؟
- ايا زده کوونکي لغتونه په جملو کې کارولی شي؟

## کورنۍ دنده:

دلاندې کلموڅخه مناسبې جملې جوړې او په خپلوکتابچوکې يې وليکئ.
فاروق ، خليفه، مشر، برياليتوبونه

# اتلسم لوست

## ګلان

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، او دګلانو د بېلابېلو برخو د نومونو پېژندل دي.

پوښتنې:

- تاسو څو ډوله ګلان پېژنئ؟ نومونه يې ووايئ.
- آيا پوهېږئ چې د ګل د بېلابېلو برخو نومونه څه دي؟
- زموږ د هېواد کومې مېوې له ګلانو څخه ترلاسه کېږي؟ نومونه يې واخلئ!

زموږ په ګران هېواد کې ډول ډول ګلان پيدا کېږي. چې غوره ډولونه يې دادي: کشمالی، ياسمن، شبو، نرګس، ګلاب، چنبېلي، فرشي، پتوني، داودي او داسې نور چې زموږ هېواد وال يې په بڼونو، چمنونو او کورونو کې د ښايست او دهوا د سمسورتيا له پاره کري او روزنه يې کوي.



زموږ د هېواد مشهوري مېوو لرونکي ونې لکه زردآلو، آلوبالو، لېمو، انار، انګور، ناک، مالټه، نارنج، منه، چارمغز (غوزان)، بادام او پسته، هم رنګارنګ او ښکلي ګلان لري.

په اوسنۍ زمانه کې ډېر هېوادونه له ډول ډول ګلانو څخه په زړه پورې عطرونه او درمل جوړوي چې هر يو يې د زيات ارزښت وړ او د ژوند د چارو په ښکلا او روغتيا ،خوشحالۍ کې ډېر ارزښت لري.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې د لوست عنوان په تخته ولیکي اولوست دې په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې د ګلانو د بېلابېلو برخو په هکله خبرې وکړي.
- ښوونکی دې د متن له مخې پر زده کوونکو باندې املا ولیکي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او بیا دې دګلانو د ګټو په هکله دهر ګروپ څخه یو تن خبرې وکړي.

۲. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

زمونږ په هېواد کې ډول ډول ګلان ___________________ .

پـه اوسـنۍ زمانـه کـې ډېـر هېوادونـه لـه ډول ډول ګلانـو څخـه پـه زړه پـورې عطرونه او درمل ___________ .

هر یو یې د زیات ارزښت وړ او د ژوند د چارو په ______ او _______ ، ______ کې ډېر ارزښت ___________ .

۳. لاندې مفردې کلمې په جمع واړوئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ!

| | |
|---|---|
| کشمالی | کشمالي |
| زرد آلو | زردآلان |
| منه | _______. |
| مالته | _______. |

۴. پوښتنې:

- کومې میوه لرونکې ونې پېژنئ نومونه یې واخلئ؟
- کوم ګلان زمونږ په هېواد کې پیدا کېږي؟
- له ګلانو څخه څه شی جوړېږي؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د متن په مطلب پوه شوي دي؟
- د ګلانو په هکله معلومات ورکولی شي؟
- زده کوونکي په دې پوه شول چې له ګلانو څخه څه شی جوړېږي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ګلانو په هکله پنځه کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# نولسم لوست

## د مېوو د پوټکو د بې ځایه اچونې زیانونه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د مېوو د پوټکو د بې ځایه اچولو په زیانونو پوهېدل او له هغه ځخه ډډه کول دي.



**پوښتنې**:

- ستاسو په نظر دمېوو د پوټکو اچول د لارو په سر ښه کار دی او که بد؟ او ولې؟
- کله چې میوه خورئ کوم ټکي باید په پام کې ولرئ؟

**اجمل** او زمری دواړه په څلورم ټولګي کې زده کړه کوي. **اجمل** هوښیار، او با ادبه هلک دی. په ټولګي کې لومړی لمبر او په ښوونکو ګران دی. له خپلو ټولګیوالو سره ښه ناسته او ولاړه کوي. خو زمری یو بې پروا او شوخ هلک دی. د ټولګي ټول زده کوونکي د هغه له لاسه په تنګ دي.

یوه ورځ چې زمری په ښوونځي کې د خپلو څو نورو ملګرو سره د کېلو په خوړلو لګیاو او د کېلو پوټکي یې په بې پروایۍ سره د ښوونځي په لاره غورځول. **اجمل** غوښتل چې ټولګي ته لاړ شي پام یې نه شو پښه یې د کېلې په پوټکي کېښوده.

په ځمکه وغورځېد او سخت ژوبل او نا آرامه و، روغتون ته یې یوور. وروسته له معاینې څخه څرګنده شوه چې د پښې هډوکی یې مات شوی دی. ډاکټر ورته نسخه ور کړه او بیا یې ورته لارښوونه وکړه چې خپلې پښې ته ډېره پاملرنه وکړي. **اجمل** د ډاکټر خبرې په پام کې ونیولې د څو میاشتو په بهیر کې د **اجمل** کلنۍ آزموینه را ورسیده او دی له آزموینې څخه پاتې شو.

دې ته اړشو چې همدا ټولګی په بل کال کې بیا ولولي. په دې ځای کې پوه شو چې د زمري دبې ځایه پوټکو غورځولو او د بې پروایي له امله اجمل ته څومره زیان ورسید. نو ګرانو زده کوونکو! تاسې هم کله چې یو شی خورئ لومړی یې ومینځئ. بیا یې وخورئ او دهغه پوټکي د لارې په سر مه غورځوئ! د خځلو اچولو له ببلرونو څخه ګټه واخلئ چې نورو ته ستونزه او زیان ونه رسېږي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې د متن د مطلب په هکله لومړی له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او بیا دې زده کوونکو ته د مېوو د پوټکو دبې ځایه اچونې د زیانونو په هکله معلومات ور کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او دلوست د مطلب په هکله دې نوروته معلومات ورکړي.

۲. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو بشپړې کړئ!

اجمل او زمری دواړه په څلورم ټولګي کې ______کوي.

اجمل یو هوښیار او با ادبه _____ دی.

له خپلو ټولګیوالو سره ښه _____ کوي.

خو زمری ډېر بې پروا او شوخ هلک دی د ټولګي ټول زده کوونکي د هغه له لاسه ________ وو.

یوه ورځ چې زمری په ښوونځي کې د خپلو څو نورو ملګرو سره د ______ په خوړلو لګیا و او د کېلو ______ به یې په ______ د ښوونځي په لاره کې غورځول.

اجمل ________ چې ټولګي خواته لاړ شي.

پام یې نه شو ________ یې د کیلې د پوستکي په مخ کېښوده او په ځمکه وغورځېد.

دی د پښې د ژوبلېدو څخه __________ و.

ډاکټر ورته ____________ ورکړه.

په دې ځای کې پوه شو چې د زمری د بې ځایه پوټکو غورځولو او دبې پروایي له امله اجمل ته څومره ____________ ورسېده.

تاسې هم کله چې څه شی خورئ لومړی یې ومینځئ، بیا یې __________ .

دهغه پوټکي دلارې په سر ________ بلکې د خځلو اچولو له بېلرونو څخه ګټه واخلئ!

۳. پوښتنې:

- اجمل څه ډول هلک و؟
- اجمل په ښوونکو او خپلو ټولګیوالو باندې ولې ګران و؟
- زمری څه ډول هلک و؟
- اجمل د څه شي له کبله ژوبل شو؟
- موږ باید کوم کارونه وکړو تر څو د نورو په نظر د ښه نوم خاوندان شو؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- دوی د متن په مطلب پوه شوي دي؟
- زده کوونکي د متن مطلب په خپله ژبه خپلو ټولګیوالوته ویلی شي؟
- د جملو تش ځایونه یې په مناسبو کلمو سره ډک کړی شول؟
- پوښتنو ته یې سم ځوابونه ورکړل؟

**کورنۍ دنده:** د متن مطلب د خپلو کتابچو په څو کرښو کې ولیکئ!

## شلم لوست

# راډیو

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د راډیو په اړه لنډ معلومات ورکول دي.

پوښتنې:

- تاسې خبرونه د څه شي په وسیله اورئ؟
- راډیو کومې اسانتیاوې رامنځ ته کړې دي؟
- د راډیو د جوړښت په اړه څوک خبرې کولی شي؟

د بېسیم ټېلګراف له رامنځ ته کېدو او پرمختګ څخه وروسته الماني پوه (هرتس) د ریاضي د معادلو له مخې ثابته کړه چې راډیو په فضا کې د موجونو قوه د څپو په واسطه لېږدولی شي. د انسانانو او نورو غږونو څپې بریښنا ییزې کولی شي او دا آوازونه بیا بل ځای ته رسوي. د همدې تجربې په بنسټ ټېلګراف جوړ شو. او وروسته بیا د ایټالوي پوه مارکوني د تجربې له مخې په (۱۸۹۵ م) کال راډیو جوړه کړه او د خلکو نندارې ته یې وړاندې کړه چې د بر ژربې پراختیا وموندله.



زموږ په هېواد کې دغازی امان الله خان د حکومت په موده کې چې (۱۳۰۴) لمریز کال و. عطا الله خان یې دراډیو تخنیک د زده کړې له پاره د المان هېواد ته ولېږه. په (۱۳۰۵) کال له څوتنو المانیانو او د راډیو له دوو لېږدوونکو د ستګاوو سره بېرته خپل هېواد ته راستون شو او په چټکۍ دراډیو د ستدیو د جوړولو کار پیل شو د (۱۳۰۲) کال د تلې په میاشت کې راډیو خپل قانوني پړاوونه تېر او په خپرونو یې پیل وکړ.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې د لوست متن په لوړ آواز ولولي.
- د راډیو د ارزښت په اړه دې دزده کوونکو د سویې سره سم معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې د بېسم ټېلګراف په اړه لنډ معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي، څو زده کوونکي په وار دراډیو په اړه نوروته خپل معلومات او ځرګندونې وړاندې کړي.

٢. پوښتنې:

- الماني پوه (هرتس) د ریاضي د معادلو له مخې د څه شي په هکله خپله تجربه څه ډول ثابته کړه؟
- مارکوني په کوم کال کې راډیو اختراع کړه؟
- زموږ په هېواد کې د راډیو د تخنیک زده کړه د لومړي ځل لپاره چا وکړه؟
- راډیو خلکوته کومې اسانتیاوې برابرې کړې دي؟

٣. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

راډیو په فضا کې د موجونو قوه د ________ په واسطه لېږدولای شي.
د همدې تجربې په بنسټ ____________ جوړ شو.
وروسته بیا ایټالوي پوه ______د تجربې له مخې په (١٨٩٥ م) کال راډیو جوړه کړه.
زموږ په هېواد کې د ___________ د حکومت په موده د راډیو د ستګاه جوړه شوه.

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- زده کوونکو د راډیو په اړه پوهه حاصله کړه؟
- دوی کولی شي چې د راډیو د ارزښت په اړه خبرې وکړي؟
- ورکړل شویو پوښتنو ته مناسب ځوابونه ویلی شي؟
- نیمګړې جملې په مناسبو کلمو ډکولی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (راډیو، ټېلګراف، فضا، غږونه) کلمې په جملو کې وکاروي.

# يوويشتم لوست

## د ژرندو ډولونه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل دژرندو او د هغو د ډولونو په اړه معلومات ترلاسه کول دي.

پوښتنې:
- خلک خپلې غلې چېرې اوړه کوي؟
- څو ډوله ژرندې پېژنئ؟ نومونه يې واخلې؟



خلک دغلې دانې دميده کولو بېلابېلې لارې چارې کاروي او دغلې دانې ميده کول دخپل خوراک له پاره ډېر ضروري ګڼي. خلکو د ژرندو له لومړنيو ډولونو څخه هم ګټه اخيسته لکه لاسي مېچنې، بادي ژرندې، د اوبو ژرندې، چې اوسنۍ بڼه يې د ماشينونو بېلابېل ډولونه دي او د برېښنا او تېلو په وسيله ګرځي، خلک پرې خپله غله دانه اوړه کوي. له بادي ژرندو څخه په هغو سيمو کې سمه ګټه اخيستل کيداى شي چې باد ولري او د هغو له پاره هوايي ژرخونه جوړ کړاى شي.

د اوبو له ژرندو څخه په هغو سيمو کې سمه ګټه اخيستل کېږي چې ډېرې اوبه ولري. هغه سيمې چې برېښنايي ژرندې او برېښنا نه لري هلته د تيلو او ماشيني ژرندو څخه ګټه اخيستل کېږي.



ژرندې دغلو، دانو د اوړه کولو سربېره د خلکو له پاره مالي ګټه او د کار يوه ګټوره لارهم ده. له همدې لارې څخه ځينې کورنۍ خپلې ورځنۍ او د ټولنې اړتياوې پوره کوي. له دې امله زموږ خلک د ژرندو شتوالي ته ډېره اړتيا لري.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د ژرندو د ډولونو او دهغو په ارزښت دې خبرې وکړي.

## دزده کوونکو فعالیت:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. بیا دې یو تن د ټولګي په مخکې د ژرندو د ارزښت او ګټو په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.

۲. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ!

خلکو د ژرندو له لومړنیو ډولونو څخه ___________ اخیسته.

له بادي ژرندو څخه په هغو _________ کې سمه ګټه اخیستل کېدای شي چې ___ ولري.

د اوبو له ژرندو څخه په هغو سیمو کې سمه ګټه اخیستل کېږي چې ډېرې _________ولري.

زموږ په هېواد کې دژرندو _________________ ډولونه شته.

ژرندې دغلو دانو د اوړه کولو او میده کېدو سربېره د خلکو له پاره ___________ ګټه او د کار یوه ګټوره لار هم _______ .

له همدې امله زموږ خلک د ژرندو شتوالي ته ډېره ___________ لري.

۳. د لاندې کلمو مترادف له چوکاټ څخه پیدا کړئ او بیا یې د کلمو ترڅنګه په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

خلک ___ بڼه ______اړتیا______ګټه _____

| وګړو | فایده | ضرورت | شکل |
|---|---|---|---|

۴. پوښتنې:

- څو ډوله ژرندې مو وپېژندلې، نومونه یې واخلئ؟
- خلک له ژرندو څخه څه ګټه اخلي؟

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دژرندو ډولونه یې وپېژندل؟
- دژرندو د ارزښت په اړه معلومات ورکولی شي؟
- نیمګړې جملې یې په مناسبو کلمو بشپړې کړای شوې؟

## کورنۍ دنده:

دژرندو ډولونو نومونه واخلئ او بیا دژرندو د ګټو په اړه څو مناسبې جملې ولیکئ.



## دوه و یشتم لوست

# کاغذ او کتابونه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د کاغذ د ارزښت او کتابو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکول دي.

**پوښتنې**:

- موږ خپلې خبرې او اړتیاوې د څه شي په مخ لیکو؟
- پخوانیو خلکو به خپلې خبرې د څه شي په مخ لیکلې؟ او ولې؟

موږ څومره کتابونه چې ګورو، دا ټول د کاغذ په مخ چاپېږي. که کاغذ نه وای کتابونه به هم نه وای. د علم او پوهې خپرونه به ستونزمنه وای. د پخوانیو خلکو له حالاتو او پېښو څخه خبرېدل به ګران کار وای. د نورو هېوادونو له حالاتو نه به بې خبره وای. د نړۍ پرمختګ د پوهې د خپرېدو برکت دی. علم او پوهه د کاغذ په وسیله له یوه نسل څخه بل نسل ته او له یوه ځای نه بل ځای ته خپرېږي. په تېرو زمانو کې چې کاغذ جوړ شوی نه و، د خلکو خبرې، کیسې نکلونه په ډبرو، خاورینو تختو او پوستکو باندې لیکل کېدې. کله چې خلکو لږ پرمختګ وکړ خپلې خبرې به یې پرهډوکو، د ونو په پوستکو او پاڼو لیکلې. ورو ورو د څارویو په څرمنو لیکل پیل شول. دوه زره کاله پخوا د مصر خلکو د کاغذ جوړولو نوې طریقه پیدا کړه. د یو ډول ونې پوستکي یې پاک کړل او په هغو یې لیکل پیل کړل. په هغو وختونو کې د چین خلکو هم د سپنسیو، ټوکر او ټوټو څخه کاغذ جوړ کړ. په همدې توګه د کاغذ د جوړولو له پاره وخت په وخت په هر ځای کې کوښښونه وشول ترڅو نننی کاغذ په اوسنۍ بڼه رامنځ ته شو. او سنی کاغذ له یو ډول و نو څخه جوړېږي. دلرګیو ټوټې په یوه ډنډ کې اچوي او دا ټوټې چې (اسپارتو) نومېږي، هم ور سره ګډ کړي. ځینې نور توکي هم ور سره اچوي. دا توکي د لرګي ټوټې حلوي او یو ټینګ او بلن شی ورڅخه جوړېږي. بیا دا اوبلن د ماشینونو په وسیله نری کوي او د یو شي پرمخ یې خپروي چې وچ شي. وروسته یې په بېلوبېلو اندازو غوڅوي چې کاغذ ورڅخه جوړ شي. کاغذ یوازې د کتابونو، مجلو او ورځپاڼو په چاپو لو کې نه کارول کیږي بلکې له پېړ او پنډ کاغذ څخه د کتابونو پوښونه، د اورلګیت پوښ، کارتونه، الماری اوبکسونه هم جوړوي.

همدا راز نوټونه هم له يو ډول کاغذ څخه جوړېږي چې په هغو باندې دورځينې ژوند د اړتيا شيان اخلو او هم يې خرڅوو.

ښوونکي ته لارښوونه:
- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي. بيا دې د کاغذ د ګټو او کارولو پــه اړه معلومات وړاندې کړي.
- ښوونکی دې له متن څخه څو جملې املا ووايي.

د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کـوونکي دې مـتن پـه لـوړ آواز ولـولي. بيـا دې يـو تـن د ټـولګي پـه مخکـې د کاغـذ د پيدا ايښت او ګټو پـه اړه په لنډه توګه خبرې وکړي.

۲. لغتونه او معناګانې:

اوبلن يا اوبڼ، مايع

پېر، پړاو

سپېڅلی، تاروتو

۳. پوښتنې:

- خلکو به په تېرو زمانو کې خپلې خبرې، د څه شي په مخونو ليکلې؟
- د چين خلکو له څه شي څخه کاغذ جوړ کړ؟
- له کاغذ څخه موږ څه ګټه اخلو؟
- موږ خپلې ليکنې د کاغذ پرمخ ولې ليکو؟

۴. د لاندې کلمو سمه بڼه په ګوته کړئ! په خپلو کتابچو کې يې وليکئ!

| ستونزمنه | ستونذمنه |
|---|---|
| پرمختږ | پرمختګ |
| سپېڅلي | سپنسو |
| ټوټو | توټو |
| ډنډ | دنډ |

ارزونه:
- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي په دې وپوهيدل چې کاغذ څنګه منځ ته راغی؟
- زده کوونکي کولی شي چې د کاغذ په اړه معلومات وړاندې کړي؟
- د نويو کلمو په معنا پوه شول؟
- زده کوونکو پوښتنو ته سم ځوابونه ورکړل؟

کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې په خپله خوښه د کاغذ د ارزښت په هکله څو جملې وليکئ!

# درویشتم لوست

# دلویانو خبرې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د لویانو په ګټورو خبرو پوهېدل، په ژوند کې ترې ګټه اخیستل او په متن کې د مختاړي په نښه کول دي.

پوښتنې:
- آیا تاسې په خپل کور او کلي کې د لویانو او مشرانو څخه کومه ګټوره خبره د نصیحت په توګه اورېدلې ده؟
- که مو اورېدلي وي ویې وایئ؟
- موږ د لویانو خبرو ته ولې په غور غوږ نیسو؟

- د هر انسان د بریالیتوب رمز په کلکه اراده کې دی.
- رښتینی عدالت او انصاف په عمل کې پروت دی.
- هر څوک چې ګټور کتاب له منځه یوسي لکه انسان چې ووژني او څوک چې انسان وژني نړۍ وژني.
- ډېره مطالعه وکړئ څو پوه شئ چې په هېڅ نه پوهېږئ!
- زه پرته له کتاب نه ژوند نه شم کولی.
- انسان یواځې د نېکمرغۍ له پاره پیدا شوی او نېکمرغي یوازې د کار له لارې لاس ته راځي.
- هر څوک چې ادب نه لري عقل نه لري.
- بې عمله عالم او پوه بې شاتو مچۍ ده.
- د زده کړې له پاره هېڅ وخت ناوخته نه دی.
- پوه هغه څوک دی چې د خپلو تجربو نه پند واخلي.
- بریالیتوب دهغه چا په برخه دی چې په خپل بریالیتوب باندې باور او ایمان ولري.
- پوه یې په بل زده کوي او ناپوه یې په ځان.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې د هرې وینا مطلب بیان کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.

۲. دهر ګروپ یوتن دې د متن یوه وینا ولولي او مطلب دې نورو ته وړاندې کړي.

۳. د لاندې لغتونو څخه په خپلو کتابچو کې لنډې جملې جوړې کړئ!

(اراده، نېکمرغي، عدالت)

۴. د لاندې ګډوډو کلمو څخه یوه بشپړه جمله جوړه کړئ.

(نه پوهېږئ، چې هېڅ، ډېره، خوپوه، شئ، مطالعه، وکړئ)

۵. په لاندې کلمو کې هغه کلمې ور په ګوته کړئ چې مختاړې ولري.

(بی عمله، ناوخته، ناپوه، بریالیتوب، عقل).

**ارزونه:**

- زده کوونکي ګټورې ویناوې په لوړ آواز سمې لوستلی شي؟
- زده کوونکي دوینا وو په معنا پوه شول؟
- زده کوونکي د ویناوو په مطلب خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو نوي لغتونه په جملو کې وکارولی شول؟
- زده کوونکي له ګډوډو کلمو څخه مناسبه جمله جوړولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

د متن جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او له یاده یې زده کړئ!

# ثلیریشتم لوست

## سپینه ادې

**موخه:** د سپینې ادې پېژندل او ددې متن لوستل او لیکل دي.

پوښتنې:
- د سپینې ادې نوم خو به مو اورېدلی وي ویلی شئ چې هغه څوک وه؟
- تاسو دځینو پښتنې مېرمنو شاعرانو نومونه اخیستلی شئ چې هغوی په خپل وخت کې شعرونه ویلي وي؟

سـپینه ادې دنـور محمـد الکـوزي لـور وه ، پـه قـام الکـوزۍ او دهـرات دښـار اوسېدونکې وه . هغه دخپل وخت ډېره پوهه ، زاهده او پښتنه ښځه وه.

سربېره پر دې چې یوه مشهوره عالمه وه دپښتو ژبې یوه پخه شاعره هم ګڼل شوې ده. زیات اشعاریې ویلي دي ، کله چې ایرانیانو په (۱۲۵۵هـ ق ) کال په هرات یرغل وکړ او دهغوی یرغل له ماتې سره مخامخ شو او افغانانو برى و مومند نو دغې پښتنې مېرمنې دافغانانو د بري په ویاړ یو ډېر ښکلی شعر وواېه چې د (هرات محاصره ) نومېږي . په هغه شعرکې یې دافغانانو د بري ستاینه کړې ده.

د شعر څو بیتونه یې دادي:

| | |
|---|---|
| راشـــه چې تاته حکایت کـومه | د سـدوزو د سـلطنت کـومه |
| د پـښـتـنـو توري به تل ځلـېږي | د دښمن سترګې له برښنا ړند یږي |
| دوی وو مېړونه پښتانه توریالي | پر ننګه تینګ وو د وطن ننګیالي |
| د هـرات خوا وه له غلیمه خالي | دلته خپره وه هوسایي خوشحالي |

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې دلوست متن ولولي او بيادې د سپيني ادې په هکله معلومات و ړاندې کړي.
- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه و غواړي چې دهر ګروپ يو تن دسپينې ادې په هکله نورو ته خپل معلومات وړاندې کړي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې په ګروپونو کې متن ولولي اوبيا دې دلوست د مطلب په هکله له يو بل سره خبرې وکړي. وروسته دې دهر ګروپ يو کس د ټولګي مخې ته راشي او د سپينې ادې په هکله دې خپل معلومات وړاندې کړي .

۲. دلاندې کلمو مترادف شکل له درکړل شوي چوکاټ څخه پيدا کړئ او د کلموتر څنګه يې په خپلو کتابچو کې وليکئ:

**الف**:پوهه: ________

**ب** : زاهده ________

**ج** : وياړ: ________

**د** : ستاينه:_______

| پرهېزګاره |
|---|
| افتخار |
| صفت |
| عالمه |

۳. پوښتنې:

- سپينه ادې د چا لور اوپه قام څوک وه ؟
- سپينې ادې دافغانانو دبرې په وياړ يو شعر ويلی دی دهغې شعر څه نو مېږي ؟

۴. په لاندې کلموکې نوم په نښه کړئ او بيا يې په خپلو کتابچوکې وليکئ!

سپينه: نورمحمد: قام: هرات: عالمه:

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی اوليکلی شي؟
- دلوست په مطلب پوه شول؟
- دسپينې ادې په هکله نوروته معلومات ورکولی شي؟
- دورکړل شويو متراد فو کلمو معنا يې له چوکاټ څخه پيدا کړی شوه؟
- پوښتنوته يې سم ځوابونه وويل؟
- په ور کړل شويو کلمو کې يې نومونه په نښه کړل؟
- زده کوونکي دلوست له پوهېدو څخه دخوښۍ احساس کوي؟

**کورنۍ دنده:**

د متن مطلب په خپلو کتابچو کې په خو کرښو کې وليکئ!

# پنځه ویشتم لوست

## جرګه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د جرګې د ارزښت په اړه معلومات ورکول او په متن کې د مترادفو کلمو په نښه کول دي.

پوښتنې:

- جرګه څه ته وايي؟
- په جرګه کې خلک په کومو موضوع ګانو باندې خبرې کوي؟



جرګــه د افغانــانو ملــي دود دی. کلــه چــې زمــوږ د هېــواد والــو تــر مــنځ کومــه ســتونزه پیــدا شــي، د قــوم مــشران ســره راغونډېږي په ستونزو باندې خبرې کوي. هر څوک خپله غوښتنه او نظر وايي. په جرګه کې د هر چا خبرې اورېدل کېږي.

تر ډېر فکر او غور وروسته داسې پرېکړه کېږي چې ټولو ته د منلو وړ وي. د جرګې له پرېکړو څخه هېڅوک سر نه شي غړولی.

که څوک سر غړونه وکړي هغه ناغه کېږي. د دوو کسانو، کورنیو، کلیو او قومونو ترمنځ ستونزې او شخړې په جرګو اوارېږي، د جرګې پرېکړو ته ټول خلک درناوی کوي او مني یې.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د جرګې په اړه دې معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن له يو بل سره په چوپتيا ولولي.

۲. د هر ګروپ يو تن دې د جرګې په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

۳. د لاندې جملو د تشو ځايونو له پاره له چوکاټ څخه کلمې خوښې کړئ او په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ!

| دود ، شخړه، راټولېږي، غور |
| --- |

کله چې کومه ______________ پيدا شي د قوم مشران سره راغونډېږي.
په جرګه کې خلک او مشران _________________ .
له ډېر ____________ وروسته پرېکړې کيږي.
جرګه د افغانانو ملي _______________ دی.

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د جرګې په اړه پوه شوي دي او خبرې پرې کولی شي؟
- د جملو تش ځايونه يې په مناسبو کلمو سره ډک کړای شول؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د جرګې په اړه څو جملې وليکي.

# شپږ ویشتم لوست

## کیسۍ

**موخه**: د کیسۍ لوستل، لیکل او په معنا یې پوهیدل دي.

پوښتنې:
- تاسې د کیسۍ په هکله معلومات لرئ؟
- کیسۍ څه ته وایي؟

**کیسۍ**: د خصوصیاتو د بیانولو له مخې دیو شي پېژندلو یا معلومولو ته کیسۍ وایي.دا خصوصیات هم په نظم او هم نثر دواړو کې بیانېږي.
ووایئ دا څه دي؟

- په ورغوي کې ځايیږي، شپه او ورځ پرې معلومېږي. (ساعت)
- خوله یې په اور کې ده شونډې یې د پوستکي نه جوړې دي (پښن بنۍ)
- چې سپین وي تور نه وي چې تور وي سپین نه وي. (شپه او ورځ)
- سل خولې لري نه ګېډه نه کولمې لري. (غلبېل)
- ځي،ځي، مخ نه را اړوي. (اوبه)
- چې ځم راسره ځي چې نه ځم نه ځي. (سیورۍ)
- آذان کوي ملا نه دی دوه پښی لري انسان نه دی. (چرګ)
- غاښونه لري خو خوراک پرې نه شي کولی. (اره)
- پوستکی یې دننه غوښه یې بهر. (شاتینګی)

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې کیسې په لوړ آواز ولولي.
- د کیسې مطلب دې لومړی د زده کوونکو څخه وپوښتي.
- زده کوونکي دې وهڅوي چې دوی خپلې کیسې ووایي.
- زده کوونکي دې د ټولګي د چاپېریال شیانو ته وګوري او کیسې دې ترې جوړه کړي. نور به یې وار په وار ځواب وایي..

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱.زده کوونکي دې په وار سره یوه کیسې په لوړآواز ولولي. بل تن به یې وار په وار ځواب وایي.

۲. زده کوونکي دې یو له بل سره کیسې ولولي او دهغې ځوابونه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۳. لاندې نیمګړې کیسې په مناسبو کلمو سره ډکې کړئ. بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

سل خولې لري نه ګېډه نه کولمې _______________.

ځي ځي مخ نه _____________.

غاښونه لري او خوراک نه شي پرې ____________.

چې ځم را سره ځي چې نه ځم _______________ .

**ارزونه:**

- زده کوونکي کیسې سمې لوستلی شي؟
- د کیسیو ځوابونه یې پیدا کړل؟
- له ځانه یې کیسې وویلی شوې؟
- نیمګړې کیسې په مناسبو کلمو سره بشپړولی شي؟

## کورنۍ دنده:

هر زده کوونکی دې د کور د غړو په مرسته څو کیسې ولیکي. ټولګي ته دې راوړي او ملګرو ته دې واوروي ملګري به یې ځوابونه وایي.

# اوه ویشتم لوست

## همت

**موخه**: زده کوونکي دلاندې کیسې په لوستلو او لیکلو سره د همت اومېړانې په مفهوم او ارزښت پوه شي او له بې همتۍ څخه به ځان وژغوري.

پوښتنې:
- داسې یوه لنډه کیسه مو زده ده چې د همت په هکله وي؟ ویې وایئ!
- همت څه مفهوم لري؟

حاتم طایي ته چا وویل: تر خپل ځان دې په دنیا کې بل څوک مېړنی لیدلی دی او که نه؟

حاتم طایي ورته په ځواب کې وویل: هو! یو ورځ ما څلویښت اوښان دعربو د امیرانو له پاره حلال کړي وو. هغوی مې مېلمانه وو.

د دښتې یوې ګوښې ته وتلی وم. یو سړی مې ولید چې د ځوځانو یو لوی ګېډی یې په شا کړی و. له هغه څخه مې پوښتنه وکړه: د حاتم طایي مېلمستیا ته ولې نه ځې چې ډېر خلک یې په دسترخوان راټول شوي دي؟

سړي وویل:

هغه څوک چې خوري ډوډۍ د خپله لاسه

د حاتم منت په ځان نه ړدي د پاسه

کله چې ما د ده د لوړ همت خبرې واورېدې له ځان سره مې وویل: په رښتیا دغه سړی په مېړانه او همت کې له ما څخه زیات دی.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د متن د مطلب په اړه دې زده کوونکو ته معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي، بیا دې یو تن په وار سره د ټولګي په مخکې د لوست دمطلب په اړه خبرې وکړي. متن دې د کیسې په توګه ووایي.

۲. د لاندې کلمو مترادف له چوکاټ څخه په ګوته کړئ او بیا یې د کلمو ترڅنګ په خپلو کتابچو کې ولیکئ!




همت ____________

امیران ___________

ګېډۍ ___________

۳. د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

حاتم طایي ته ________ وویل:

تر خپل ځان دې په دنیا کې بل ________ مېړنی لیدلی دی او که نه؟

یو ورځ ما څلوېښت اوښان د عربو او امیرانو له پاره ____کړي وو او هغوی مې ____ وو.

یو سړی مې ولید چې د ___________ یو لوی ګېډۍ یې په شا کړی و.

له هغه څخه مې ____________ وکړه.

د حاتم طایي مېلمستیا ته ولې ___________.

هغه څوک چې خوری ډوډۍ د خپله ____________.

د حاتم منت په ځان نه ږدي ____________.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د متن په مطلب پوه شوي دي؟
- زده کوونکي د کیسې مطلب په خپله ژبه نورو ته ویلی شي؟
- د کلمو مترادف یې په ګوته کړل؟

**کورنۍ دنده:**

د لوستل شوې کیسې مطلب په څو جملو کې په خپلو کتابچو کې ولیکئ،او دمتن شعر له یاده زده کړئ.

# اته ویشتم لوست

# د پلونو ارزښت

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د پلونو دارزښت په هکله معلومات او له پلونو څخه سمه ګټه اخیستل دي.

پوښتنې:
- ستاسو په فکر د پلونو شتوالی څه ارزښت لري؟
- که پلونه نه وي څه به پېښ شي؟

پلونه او نور وسایل د تلو راتلو ارزښت ناکې وسیلې دي. د پلونو شتوالی ډېره ګټه لري. د پُل په وسیله دوه بېلې لارې سره نښلول کیږي. د پلونو د شتوالي په وسیله دیوه سیند یوه خوا له بلې خوا سره یو ځای کېږي او دتګ او راتګ سبب کېږي.د مثال په توګه که چېرې د یو سیند له پاسه پُل نه وي، موږ نه شو کولی چې له سیند څخه بلې خوا ته تېرشو. نوښه به دا وي په هغو سیمو کې چې



هلته سیند او لویې ویالې موجودې دي باید پُل ورته جوړ شي. په اوسنۍ نړۍ کې د خلکو د ستونزو د لېرې کېدوله پاره د سیندونو او لویو ویالو له پاسه پاخه او کلک پلونه جوړ شوي دي. چې د تګ او راتګ د اسانتیاوې یې برابرې کړې دي. نو موږ ته په کار ده چې د پلونو په ارزښت وپوهېږو او سمه ګټه ترېنه واخلو. کوم پلونه مو چې وران او وېجاړ شوي دي بېرته یې په خپلو متو او زیار سره جوړ کړو چې د ژوند د چارو لارې لنډې شي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- متن په لوړ آواز ولوله؛ د پلونو د ارزښت په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.
- د خپل هېواد د څو مشهورو پلونو نومونه په تخته ولیکئ او په زده کوونکو یې ولولئ..

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. دلوست متن دې ولولي او د پلونو د ارزښت په هکله دې د هر ګروپ یو زده کوونکی معلومات ورکړي.

۲. پوښتنې:

- پلونه زموږ په ورځیني ژوند کې څه ګټه لري؟ او ولې؟
- د خپل هېواد د څو مشهورو پلونو نومونه واخلئ؟

۳. تمرین:

د لاندې چوکاټونو د مفردو کلمو جمع او د جمع کلمو څخه مفرد کلمې جوړې کړئ!

| مفرد | جمع |
|---|---|
| پُل | |
| لار | |
| خوا | |

| جمع | مفرد |
|---|---|
| سیندونه | |
| سیمې | |
| ویالې | |

۴. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

پلونه د خلکو ، څارویو او موټرو د تلو او راتلو ارزښت ناکې وسیلې ______________ .

د پلونو شتوالي خورا ډېره ګټه ____________ .

په هغو سیمو کې چې _______ سیند یا لوېې ویالې موجودې دي باید ____ورته جوړ شي.

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟
- د پلونو د ارزښت په اړه یې معلومات ترلاسه کړ؟
- پوښتنو ته یې مناسب ځوابونه ورکړل؟

کورنۍ دنده:

دپلونو د ارزښت په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

# نهه ويشتم لوست

# د بخار ماشين

**موخه**: دمتن لوستل، ليكل، د بخار ماشين پېژندل او زده کوونکي په دې پوه شي چې د دغه ماشين په واسطه د خلکو ورځنۍ ستونزې اوارېږي.

پوښتنې:

- ويلی شئ چې بخار څه شی دی؟
- څه فکر کوئ د بخار ديگی ژر خواره پخولی شي او که عادي ديګونه؟ ولې؟



هغه وخت چې د بخار ماشين جوړ شوی نه و خلکو به ټول خواړه په خاورينولوښو کې پخول. هر کله چې د بخار ماشين جوړشو نو لاسي کارونه ماشيني شول چې په دې توګه د بخار د ماشين په هکله نظر د لومړي ځل له پاره ديوپوه (ليوناردوداوينچي) له خوا په (۱۶) ميلادي پېړۍ کې وړاندې شو. په اوه لسمه پېړۍ کې د دغه ماشين يوه بېلګه جوړه شوه چې د بخار دفشار په واسطه به يې او به له کان (معدن) څخه پورته کولې. په همدې پېړۍ کې بيا يوه ايټالوي مخترع (جيوواني) يوه اوبه ايشوونکې آله (آب ګرمي) جوړه کړه. خوتر ټولو د پاملرنې وړ پوه چې په همدې پېړۍ کې يې ستر کاروکړ هغه (ينيس پاپن) دی. ده د بخار هغه ديګی جوړ کړ چې د نرۍ په پخلنځيو کې کارول کيږي او په دغه ديګي کې يې د لومړي ځل له پاره دغوبې کلکه غوښه پخه کړه. خو (پاپن) هم ونه کړی شول چې د بخارانجن جوړ کړي.
تردې وروسته بيا (توماس نيوکومن) د بخارانجن جوړ کړ. يو بل پوه چې (جيمزواټ) نومېده دې کارته يې وده ورکړه. وروسته بيا د بخار ماشينونه هم ډېر شول او ډېر ډولونه يې جوړ شوي دي او په ټوکر اوبدلو، د کانونو، ترانسپورتي ماشينونو او د نورو ډول ډول فابريکو په جوړولو کې ترې کار واخستل شو. ټوله نړۍ د ماشين کيدو په لور وخوځېده، او دغه بشپړتيايي هڅې لا روانې دي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- بیا دې د بخار ماشین په اړه لنډ معلومات وړاندې کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او بیا دې یو تن د ټولګي مخې ته را شي او د بخار د ماشین په اړه دې معلومات وړاندې کړي.

۲.

| لغتونه | معنا |
|---|---|
| پېړۍ | سل کاله |
| بېلګه | نښانه |
| پخلنځی | د خوړو د پخولو ځای |

بخار: د بخارماشین د بخار د فشار په اثر کار کوي.

۳. پوښتنې:

- هغه وخت کې چې د بخارماشین نه و جوړ شوی خلکو به خپل کارونه په څه شي کول؟
- د بخاردماشین نظریه د لومړي ځل له پاره دکوم پوه له خوا وړاندې شوه؟
- (جیووانی) ایټالوي مخترع کومه آله جوړه کړه؟
- د بخار د یګی چې د نرۍ په پخلنځیو کې کارول کیږي د چا له خوا جوړ شو؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- د بخار د ماشین په اړه یې پوهه ترلاسه کړه؟
- دوی د بخاردماشین په اړه خپل معلومات نوروته وړاندې کولی شي؟
- د نویو کلمو په معنا پوه شول؟
- پوښتنو ته یې مناسب ځوابونه وویل؟

## کورنۍ دنده:

په خپله خوښه د بخارماشین او آب ګرمۍ په اړه څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!



## د پرشم لوست

# احمد شاه بابا

**موخه**: د متن لوستل ، ليكل او دهېواد د ملي و اكمن احمد شاه باباپېژندل دي.

پوښتنې:
- ويلى شئ چې احمد شاه بابا څوک دی ؟
- احمد شاه بابا په کوم کال کې او دچاله خوا دافغانستان په پاچاهۍ وټاکل شو؟

داحمدشـاه بابـا اصـلي نـوم احمـدخان دی اود ابـدالي زمـان خـان زوی دی.
احمدشاه بابا په ( **۱۱۳۵** ) هجری لمريز کال دقندهار په ښارکې زېږيدلی دی . پلار يې د هرات مشرو.
احمدشاه بابا د نادرا فشار لـه مرګه وروستـه پـه (۱۱۲۰) هجري لمريز کـال د قـوم دمشرانو دلويې جرګې له خوا دافغانستان په پاچاهۍ و ټاکل شو. پـه ډېره لږه موده کې يې پياوړی مرکزي حکومت جوړکړاودافغانستان ملي واکمن و. احمدشاه بابا سرېېره پر دې چې د جګړې په ډګرکې توريالی و، په پښتو او دري ژبو يې شعرونه ويلي دي. خپل هېواد پرې ګران و، لکه چې وايي:

که هرڅومې د دنيا ملکونه ډېرشي
زما به هېر نه شي داستا ښکلي ډاګونه
دډهلي تـخت هېرومه چې را يادکړم
زمـادښکلي پښتونخـواد غـروسـرونه

احمد شاه بابا د(**۲۲**) کالو پاچاهۍ وروسته مړشواو په کندهارکې خاورته وسپارل شو.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- متن په لوړ آواز ولوله او شعر معنا کړه!
- داحمدشاه بابا په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړه!

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي اوداحمد شاه بابا په هکله دې څو زده کوونکي معلومات وړاندې کړي.

۲. نوي لغتونه په خپلو کتابچو کې په لنډو جملوکې وکاروئ.

پیاوړی - قوي　　ډګر- میدان

واکمن - اختیاردار

۳. لاندې پوښتنې په خپلو کتابچوکې ولیکئ او ترڅنګه یې ځوابونه ولیکئ .

- داحمد شاه بابا اصلي نوم څه دی؟
- احمدشاه بابا د چا زوی دی؟
- احمدشاه بابا په کوم کال او دچا له خوادافغانستان په پاچاهۍ و ټاکل شو؟
- احمدشاه بابا څومره موده پاچاهي وکړه او چېرې ښخ دی؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د احمد شاه بابا په هکله معلومات وړاندې کولی شي؟
- نیمګړې جملې یې په مناسبو کلمو بشپړولې شي؟
- پوښتنو ته سم ځوابونه ورکوی شي؟

## کورنۍ دنده:

د لاندې بیت مطلب په څو کرښو کې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

که هر څو مې د دنیا ملکونه ډېر شي
زما بـه هېر نه شي دا ستا ښـکلي ډاګونه

# یو د پرشم لوست

# خواږه شیان

**موخه**: د متن لوستل، لیکل د خوږو شیانو پېژندل او دهغو د ګټو په اړه معلومات لاس ته راوړل دي.

پوښتنې:

- د داسې خوږو نومونه واخلئ چې خوږه ولري؟
- د ډېروخوږو شیانو خوړل ګټه لري او که زیان؟ ولې؟



خواږه شیان بېلا بېل ډولونه لري لکه بوره یا شکره، ګوړه، شیریني، قند، نقل، چاکلیټ او داسې نور. په ډېرو خوراکي شیانو او مېوو کې هم زیاته اندازه خوږه شته. په برابره اندازه د خوږوشیانو خوړل د ځوانانو، ماشومانو له پاره ضروري دي، دا ځکه چې خواږه شیان انرژي یا قوت لري چې موږ ټول او په تېره بیا ماشومان ورته ډېره اړتیا لري. خو د ډېرو خوږو خوړل د ماشومانو له پاره زیانونه لري. لکه د غاښونو خرابېدل. بله دا چې کله ماشومان زیاته خوږه یا خواږه شیان وخوري نو اشتهایې خرابوي او نور خواړه نه شي خوړلای. ځکه نور خواړه هم د بدن د ودې له پاره ضروري دي. کوښښ وکړئ چې د ډېرو خوږو شیانو له خوړلو څخه ډډه وکړئ ځکه چې ګټې یې کمې دي. او نورو ماشومانو ته هم لارښوونه وکړئ چې ډېره خوږه ونه خوري.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د خوړو شیانو په اړه دې لنډ معلومات ور کړي.
- په زده کوونکو باندې د لوستل شوي متن له مخې د املا کار وکړئ.
- د زده کوونکو فعالیتونه تر څارنې لاندې ونیسئ او پوره لارښوونه وکړئ.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي او بیا دې د هر ګروپ یو تن د خوړو د ګټو او زیان په اړه خبرې وکړي.

۲. د جملو د تشو ځایونو له پاره د قوس څخه مناسب لفظ خوښ کړئ او په کتابچو کې یې ولیکئ!

خوارړه شیان انرژي یا قوت ______________ . (لري، لرم، لري).

موږ خوړو شیانو ته ډېره اړتیا __________ (لرم، لرو، لرئ).

د خوړو د ګټو او زیان په اړه ماشومانو ته لارښوونه __________ . (وکړئ، وکړم).

۳. د لاندې کلمو څخه په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړئ!

(شیان، خوارړه، ډولونه، ماشومان اوبه، خوړل).

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی او لیکلی شي؟
- د خوړو شیانو نومونه ویلی شي؟
- د خوړو شیانو د ګټو او زیانونو په هکله خبرې کولی شي؟
- د جملو تش ځایونه یې په مناسبو کلمو سره ډک کړی شول؟
- د ورکړل شویو ګډوډو کلمو څخه په ترتیب جملې جوړولی شي؟

**کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د خوړو شیانو په اړه څلور جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# دوه د پرشم لوست

## زموږ ورځني خواړه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل دورځني ژوند دخوړو د ګټو په اړه معلومات ور کول دي.

پوښتنې:
- څه فکر کوئ چې خواړه څه شی برابروي؟
- که چیرې خواړه انسان ته ونه رسیږي څه کیږي؟



د دې لــه پــاره چــې ژونــد وکــړو او خپل ژوند په ښه توګه تېر کړو نو موږ له هوا، اوبو سربېره خوړو تـه اړتیا لـرو. خواړه د ټولو انسانانو اساسي اړتیاوې دي. بې لـه خـوړو څخـه د انسان ژونـد امکان نه لري. خواړه ټولو هغو شیانو ته وايي چې موږ يې خورو او څښو.

لـه خوړو څخـه یوه برخـه زمـوږ پـه بـدن کـې انـرژي یـا قـوت تولیـدوي. او زمـوږ د بدن له پاره مهمې دندې سرته رسوي چې په لاندې ډول یې یا دونه کوو.

۱. خواړه زموږ د بدن په وده کې خورا مرسته کوي.

۲. خواړه زموږ بدن تو د ساتي.

۳. خـواړه زمـوږ پـه بـدن کـې انـرژي برابـروي چـې جسمـي او فـکـري کارونـه سـرته ورسـوو. د دغـې انـرژۍ لـه کبلـه زمـوږ بـدن غـښتلی او پیـاوړی کېـږي او د ځینـو ناروغیو په وړاندې مو د بدن مقاومت زیاتوي.

ګرانـو زده کوونکو! هغـه خـواړه چـې زمـوږ د بـدن ټـولې اړتیـاوې بـشپړوي او هـم زموږ بدن په ښه توګه ور څخه کار او فعالیت تر سره کوي د مناسبو خوړو پـه نامـه یادیږي. په ښو او مناسبو خوړو کې د بدن د ورځنۍ اړتیا وړ مـواد لکـه پروټینونـه هم شامل دي چې زموږ بدن ته ډېر ضروري دي او بـدن تـه انـرژي برابـروي پـروټین زمـوږ هډوکي پـه تېـره بیـا د ماشـومانو هډوکی پیـاوړي کـوي پـروتین پـه غوښـه،

شیدو ، هګیو ، لوبیا ، سبو ، غلو ، او مېوو کې پیدا کېږي نو لازم دي چې مورېږ د خپل وس او توان په اندازه پروټیني خواړه وخورو تر څو بدن مو غښتلی او قوي شي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې په ورځني ژوند کې د خوړو د اړتیا په اړه لنډ معلومات ور کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.
۲. د هرګروپ یو تن دې دخوړو په اړه نورو ته معلومات ورکړي.
۳. پوښتنې:
   - خواړه زمونږ د بدن په وده کې کومې دندې سرته رسوي؟
   - په کومو خوړو کې پروټیني مواد موجود دي؟
   - مناسب خواړه کوم خواړه دي؟

۴. دلاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.
   خواړه زمونږ د بدن په ______________ کې خورا مرسته کوي.
   خواړه زمونږ بدن ________________ ساتي.
   خواړه زمونږ په بدن کې ____________ برابروي.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- په دې پوه شول چې زمونږ خواړه کوم دي؟
- د مناسبو خوړو په اړه خبرې کولی شي؟
- پوښتنو ته مناسب ځوابونه ویلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

هغه خواړه مو چې ډېر خوښېږي په خپلو کتابچو کې دهغو په هکله خپل نظر ولیکئ!

## درې د پرشم لوست

# رښتیاویل

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د رښتیاویلو په ارزښت پوهېدل او په ځان باندې یې پلي کول دي.

پوښتنې:

- که تاسو په هر کار کې رښتیا ووایئ مور او پلارمو در څخه خوشحالیږي؟
  که هو، نو ولې؟
- رښتیاویل څه ګټه لري؟

د اشک کورنۍ یوبڼ لري. یوه ورځ اشک خپل بڼ ته ورننووت او پکې ګرځیده. د بڼ په یوه خوا کې یې پر یوه تبر سترګې ولګېدې. تبریې را واخیست او دیوې مڼوه لرونکې ونې پوټکی یې پرې کړ. بله ورځ اشک له خپل پلار سره د بڼ د لیدلو له پاره ولاړ.

اشک او پلار یې په بڼ کې ګرځېدل. ګوري چې د هماغې مېوه لرونکې ونې پاڼې ژېړې شوې دي. پلار یې ډېر خواشینی او په غوسه شو. له اشک څخه یې پوښتنه وکړه: د دې ونې پوټکي چاپرې کړې دي؟ اشک چې خواشینی ښکارېده، پلار ته یې وویل: ددې ونې پوټکي ما پرې کړې دي. زه نه پوهېدم چې په دې عمل سره ونه وچېږي او پاڼې یې ژېړیږي.

پلار یې دده په رښتیاویلو ډېر خوښ شو او ورته یې وویل: زویه! د ونو پوټکي څوک نه پرېکوي. که چېرې د ونو پوټکي پرې شي نو ونه وچیږي. دا ونه ما په ډېر شوق سره ایښې وه. په حاصل هم راغلې وه. زه د دې ونې په وچېدو ډېر خپه شوم خو له بلې خوا ستا په رښتیاویلو ډېرخوشحاله شوم، ځکه چې تا رښتیا وویل او رښتیاویل تر زرو ونو ډېر ارزښت لري.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- دلوست د مطلب په اړه دې له زده کوونکو څخه معلومات وغواړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په وارسره متن ولولي. بیا دې یو یوتن د متن مطلب بیان کړي.

۲. د لاندې کلمو هم معنا پیدا کړئ او تر کلمو لاندې یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

بڼ ـ ...... خوښ ـ ......... پوټکی ـ .......... خواشینی ـ ............. غوسه .........

۳. د قوسونو نه مناسب فعل خوښ کړئ اود جملو په تشو ځایونو کې یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

د اځک کورنۍ یو بڼ ______________ . (لري، لرو)

تبر یې واخیست او دیوې مېوه لرونکې ونې. پوټکي یې _______. (پرې کړل، لېرې کړ)

اځک او پلار یې کله چې په بڼ کې _______. (ګرځېدل،تلل)

ګوري چې دهماغې مېوه لرونکي ونې پاڼې ژېړې شوي _______. (دي،ده)

زویه! د ونو پوټکي څوک نه __________ . (پرې کوي، شکوي)

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- آیا دوی له متن څخه پوهه ترلاسه کړه؟ او په مطلب یې پوه شول؟
- زده کوونکي د ښېتیاویلو په ګټو خبرې کولی شي او له ښتیا ویلو سره یې مینه پیدا کیږي.
- نوي لغتونه په جملو کې کارولی شي؟
- په نیمګړو جملو کې مناسبی کلمې کارولی شي؟

کورنۍ دنده:

د ښتیاویلو په اړه په خپله خوښه څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

# څلور د يرشم لوست

# سخاوت

**موخه:** د متن لوستل، ليکل ، د متن پر مفهوم پوهېدل او د سخاوت په هکله پوهه ترلاسه کول دي.

پوښتنې:
- ستاسو په فکر سخاوت څه ته وايي؟
- تاسو د خپل وس او توان په اندازه له کوم بې وزلي سره مرسته کړې ده څرنګه؟
- سخي انسان د خدای (جل جلاله) په نزد څه قدر لري؟

سخاوت دې ته وايي چې يو سړی د خپل مال، پیسو او نورو څخه يو څه اندازه د خدای (جل جلاله) په رضا اړو خلکو ته ورکړي. سخاوت د اسلام په سپيڅلي دين کې ډېر ښه او په زړه پورې عمل بلل شوی دی. دمثال په توګه که چېرې يو بې وزله انسان ګورو د خپل وس په اندازه له هغه سره بايد مرسته وکړو. همدا راز يو چا ته د ښو کارونو لارښوونه وکړو. سخي انسان ته د خدای (جل جلاله) دوست هم وايي.

خدای (جل جلاله) سخي انسان ته په دې دنيا کې عزت ورکوي او د هغه مال زياتوي. په آخرت کې هم ډېر ثوابونه ور په برخه کوي.

لکه چې يو شاعر وايي:

دا دنيا په سخاوت سره زياتيږي
دکوهي اوبه چې وباسې لازيات شي

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د سخاوت په اړه دې زده کوونکو ته معلومات ورکړي او د متن د بیت مطلب دې په زده کوونکو ووايي. او مرسته دې ورسره وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي. بیا دې څو تنه وار په وار د ټولګي په مخکې د سخاوت په اړه معلومات ورکړي.

۲. لاندې کلمې او ترکیبونه په لنډو جملو کې وکاروئ!

سخاوت ـ سخي ـ ځوانمرد ـ سپېڅلی

۳. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې ولیکئ!

سخاوت دې ته وايي چې یو سړی د خپل مال، پیسو او نورو څخه یو څه انـدازه د خدای (جل جلاله) په رضا _____ خلکو ته ورکړي.

سخاوت د اسلام په سپېڅلي دین کې په زړه پورې ___________بلل شوی دی.

کـه چـېرې یـو بـې وزلـه انسـان ګـورو د خـپـل وس پـه انـدازه لـه هغـه سـره باید ______ وکړو.

سخي انسان ته د خدای ______ هم وايي.

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- دوی د متن په مطلب پوه شول؟
- د سخاوت په معنا پوه شول او په دې اړه خبرې کولی شي؟
- نیمګړې جملې یې په مناسبو کلمو بشپړې کړای شوې؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې بیت مطلب په خو کرښو کې ولیکي.

دا دنیا په سخاوت سره زیاتیږي
د کوهي اوبه چې وباسې لازیات شي



# پنځه د برشم لوست

## د مور خدمت

**موخه:** د متن لوستل، لیکل او دمورد حقونو په ارزښت پوهېدل دي.

پوښتنې:

- ستاسو په نظر مور په خپلو ماشومانو کوم حقونه لري؟
- مورې او تاسې ولې د خپلې مور درناوی او ور سره مرسته کوو؟

ټولو خلکو ته په کار دي چې د خپل مور او پلار خدمت وکړي. دهغوی له لارښوونو څخه اطاعت وکړي. خبرې یې ومني. کله چې هغوی بې وسه شي مرسته ورسره وکړي چې په ژوند کې بریالي او آخرت یې روښانه شي.
هغه وخت چې رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) رحلت کاوه، حضرت علي(کرم الله وجه) ته یې وویل: زما څادر واخله او په پلانکي ځای کې یې یو شپون ته ور کړه.
حضرت علي (کرم الله وجه) څادر واخیست او د شپون ځای ته ورغی.
حضرت علي (کرم الله وجه) له چا څخه پوښتنه وکړه چې پلانکی شپون پېژني؟ سړي ورته وویل: چې هو: پېژنم یې. هغه په غره کې رمه پیایي. حضرت علي (کرم الله وجه) شپون ته ورغی او ورته یې وویل: حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) پر تا سلام وایه او دا څادر یې ما ته راکړ چې تا ته یې درکړم. شپون ورته وویل: کله چې زه خبر شوم چې د حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) غاښ شهید شوی دی، ما خپل غاښونه مات کړل. بیا مې غوښتل چې د حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) ته ورشم. خو څرنګه چې مور مې ډېره زړه او بې وسې ده. ما دهغې خدمت کاوه.
حضرت علي (کرم الله وجه) ورته وویل: تا د خپلې مور خدمت کړی دی، خدای (جل جلاله) او د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په حضور ستا ټول خدمتونه د منلو وړ دي، نو حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) خپل څادرزما په لاس تاته د سوغات په ډول رالیږلی دی. شپون بیا هغه څادر واخیست او مننه یې ترې وکړه.
د اسلام پیغمبر حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د مور په هکله دا هم فرمایلي دي:

جنت د مور او پلار تر پښو لاندې دی

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- که زده کوونکي د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په هکله نور څه معلومات لري، و دې وايي.
- د متن په مطلب دې پوره رڼا واچوي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. بيا دې څو تنه زده کوونکي په وارسره دلوستل شوي متن مطلب په خپله ژبه ووايي.

۲. پوښتنې:

مور باید له خپل مور او پلار سره څه مرسته وکړو؟

کله چې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) رحلت کاوه، حضرت علی (کرم الله وجه) ته یې څه وویل؟

شپون ته رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ولې څادر سوغات کړ؟

زموږ پیغمبر حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د مور په هکله څه فرمایلي دي؟

۳. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

ټولو مسلمانانو ته په کار دي چې د خپل مور او پلار _______________ وکړي.

حضرت علی (کرم الله وجه) څادر واخیست او د___________ ځای ته ورغی.

رسول الله دا څادر ما ته را کړ چې __________ یې درکړم.

جنت د مور او پلار تر _________________ لاندې دی.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د متن مطلب ویلی شي؟
- پوښتنوته سم ځوابونه ورکولی شي؟
- نیمګړې جملې بشپړ ولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

هرزده کوونکی دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي لیک سره د خپلې مور د حقونو په هکله څو جملې ولیکي.

# شپږم د ړشم لوست

## نوم

| | | |
|---|---|---|
| بريالي، | اجمل، | ملالۍ، |
| ونه، | غوا، | چوکۍ، |
| کرکۍ، | چرګ | |

**موخه**: دمتن لوستل، ليکل، د نوم پېژندل، په معنا او مفهوم يې پوهېدل او په جملو کې يې کارول دي.

پوښتنې:

- په چوکاټ کې څه ډول کلمې ليکل شوې دي؟
- د غه کلمې خلک څه بولي؟

**نوم**: هغه کلمه ده چې د انسان، حيوان، نبات او يا نورو شيانو د پاره وي.
لکه ختېک، قادر، آس، اوښ، ونه، څوکۍ او داسې نور.

د اجمل پلار، تورګل اکا دکور ترڅنګه د چرګانو يو فارم جوړ کړی دی.فارم هغه ځای ته وايي چې چرګان په کې ساتل او پالل کيږي. همدا راز هغه يو آس او يوه غوا هم ساتلې ده او روزنه يې کوي. د تورګل اکا مشر زوی اجمل په څلورم ټولګي کې زده کړه کوي. کله چې هغه له ښوونځي څخه رخصت او کور ته راشي، د ښوونځي کالي وباسي او بيا خپله ډوډۍ خوري. وروسته فارم ته ځي. او خپلو چرګانو او چورګوړو ته خواړه او اوبه ورکوي. دوی دخپل فارم په شاوخوا کې ښکلي ګلان او ونې هم لري چې د فارم شاوخوا يې ډېره ښکلې کړې ده. د اجمل پلار د ونو تر څنګه ښکلې څوکۍ هم ايښې دي چې د ګلانو د ننداري له پاره ترې کار اخلي. د تورګل کورنۍ د چرګانو روغتيا ته ډېره پاملرنه کوي. له دې کار څخه د دوی ژوند ډېر ښه شوی دی. تورګل اکا اجمل ته داسې وايي: زويه! که کوم وخت زموږ چرګ ناجوړه شي هغه بايد په چا ونه پلورو او نه يې غوښه په خپله وخورو ځکه چې هر کسب بايد په امانت دارۍ ولاړ وي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د نوم په اړه دې پوره معلومات له مثالونو سره وړاندې کړي.
- ښوونکی دې په متن کې د اشخاصو، ځارویو، نباتاتو او شیانو نومونه په تخته ولیکي.
- زده کوونکي دې پوه کړي چې نوموړې کلمې نومونه دي

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. د نوم په اړه دې د هر ګروپ یو تن خپل معلومات نورو ته ووایي.

٢. زده کوونکي دې د یو بل په مرسته په متن کې نومونه په ګوته کړي او بیا دې په تخته ولیکي.

٣. په لاندې کلمو کې نوم په ګوته کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

اجمل، تورګل، اکا، کور، فارم، لوی، چرګان، روزنه، اشر، ښکلي، ګلان، څوکۍ، ونې، روغتیا، ساتلې، څخه، لرې، ښه، ترې، ځکه

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- زده کوونکي په دې پوه شول چې نوم څه ته وایي؟
- د نوم په اړه نور مثالونه ورکولی شي؟
- زده کوونکو په متن کې نومونه په ګوته کړل؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د انسانانو، ځارویو اود نباتاتو یو څو نومونه ولیکي.

# اوه د یرشم لوست
# د چاپ صنعت



**موخه**: د متن لوستل، لیکل. د چاپ ماشین د اختراع په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکول دي.

پوښتنې:
- ویلی شئ چې د کتابونو د چاپ ماشین د لومړي ځل له پاره چا جوړ کړ؟ او ولې؟
- د چاپ ماشین لومړی له څه شي څخه جوړ شو؟

د احمد پلار اخبارلوست. احمد هم ورسره ناست و. له احمد سره دوه کتابونه وو. په غور یې کتل او په فکر کې و. پلار یې ور څخه پوښتنه وکړه: څه فکر کوې، زویه؟ احمد وویل: ما د اکتابونه کتل. ته یې وګوره څومره ښکلي چاپ شوي دي. پلار یې وخندل او ورته یې وویل: زویه! د نن ورځې څخه په زرګونو کلونو پخوا خلکو لیک نه پېژانده. دیوه کار یا دکوم خبر د رسولو له پاره به یې سړی یو ځای او بل ځای ته لېږه.

په دې کې یوه لویه ستونزه دا وه چې د خبرې اصلي موخه به ورکه شوه. بله ستونزه داوه چې دا خبره به هم څو تنو ته رسېده او ځینو نوروته چې لرې اوسېدل ببخي نه رسېده.

بیا داسي وخت هم راغی چې خلکو لیکل زده کړل خو د لیکلو له پاره ډېر کوښښ اووخت په کارو. وروسته خلکو فکر وکړ چې خپلې لیکنې باید ژر ولیکي او وخت مو ډېر تېر نه شي. چا چې د لومړي ځل له پاره د دې جلاجلا تورو په یو ځای کولو سره د چاپولو طریقه پیدا کړه هغه څه نومېده؟ هغه (ګوتنبرګ) نومېده هغه له لرګي څخه توري جوړ کړل اودهغه په وسیله یې کتابونه چاپ کړل.

خو ډېر ژر هغه ته څرګنده شوه چې د لرګيو دا توري خرابېږي او بيا كتابونه دومره ښكلي او صفا نه چاپيږي. د دې كار له پاره ګوتنبرګ له يو بل سره ځنې مرسته وغوښته. هغه سري ورته ديوه قالب او داوسپنې د تورو جوړولو لارې چارې ور زده كړې. په دې ډول يو وړوكې د چاپ ماشين جوړ شو چې يو كتاب يې چاپ او خپور كړ. وروسته دې كار ورو ورو پرمختګ وموند . اوس په هر هېواد كې په لكونو شمېر كتابونه، ښايسته او رنګينې ورځ پاڼې چاپېږي. چې ځوان، زده كوونكي، نر او ښځې يې په مينه لولي، خپله پوهه زياتوی اوله هغو څخه په خپل ورځيني ژوند كې ګټه اخلي... د نړۍ له حالاتو څخه ځان خبروي.
كه چېرې د چاپ ماشينونه نه وای نو موږ به له پوهې څخه بې برخې او بې خبره پاتې وای. احمد چې له پلار څخه دا ګټور معلومات واورېدل، ډېرخوښ شو او ويې ويل: پلاره! زه به دا ټولې خبرې خپلو ملګرو ته هم وكړم چې د پوهې او دچاپ د ماشين په ارزښت پوه شي.

**ښوونكي ته لارښوونه:**

- ښوونكی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د چاپ ماشين په اړه دې رڼا واچوي.

## د زده كوونكو فعاليتونه:

١. زده كوونكي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. بيا دې د لوست مطلب په خپله ژبه نوروته بيان كړي.

٢. زده كوونكي دې په ګروپونو كې متن په چوپتيا ولولي او نومونه دې پكې په ګوته كړي. بيا دې په خپلو كتابچو كې وليكي.

٣. زده كوونكي دې د لاندې جملو خالي ځايونه په مناسبو كلمو بشپړ كړي.

د احمد پلار اخبار ________.

احمد هم ورسره ناست و له هغه سره دوه __________ وو.

پلار یې ور څخه پوښتنه وکړه څه _______کوې؟

احمد وویل: ما دا کتابونه ________.

ته یې وګوره څومره ښکلي ______ شوي دي.

۴. پوښتنې:

- د احمد پلار څه شی لوست؟
- له احمد سره څه شی و؟
- د لومړي ځل له پاره چا د لرګیو څخه توري جوړ کړل؟
- د چاپ په ماشین کې څه شی چاپ او خپرېږي؟
- د چاپ ماشین ولې ارزښت لري؟

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د چاپ د ماشین په اړه پوهه ترلاسه کړه؟
- کولی شي چې دلوست مطلب خپلو نورو ټولګیوالو ته ووایي؟
- په متن کې نومونه پیدا کولی شي؟
- پوښتنو ته مناسب ځوابونه ویلی شي؟

کورنۍ دنده:

د چاپ د ماشین په اړه په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې څو جملې ولیکئ!

# اته د یرشم لوست

# د مفرد او جمع نوم

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، دمفرد او جمع نومونو پېژندل او په جملو کې یې کارول دي.

پوښتنې:

- څوک کولی شي چې د مفرد نوم او د جمع نوم ووایي؟
- مفرد اوجمع نوم څه ته وایي؟

**مفرد نوم**: هغه کلمه ده چې یوازې په یو سړي، یوحیوان اویو شي دلالت کوي.

**جمع نوم**: هغه کلمه ده چې له یو څخه په زیاتو سړیو، حیواناتو او شیانو دلالت وکړي.

په لاندې جملو کې د مفرد او جمع نومونو مثالونه:

| د مفردو نومونو جملې | د جمع نومونو جملې |
|---|---|
| دا پسه دی. | دا پسونه دي. |
| دا کتاب دی. | دا کتابونه دي. |
| هغه ونه ده. | هغه ونې دي. |

د مفردو جملو جمع ولیکئ!

| مثال: دا سړی دی. | دا سړي دي. |
|---|---|
| مفرد | جمع |
| دا ښځه ده. | دا ......... دي. |
| دا اس دی. | دا.......... دي. |
| دا سنډا دی. | دا ......... دي. |
| دا پسه دی. | دا .......... دي. |

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- دمفرد او جمع په اړه دې معلومات له مثالونو سره په تخته ولیکي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې په وارسره متن ولولي.

۲. د چوکاټ مفرد او جمع نومونه د لاندې جملو په تشو ځایونو کې وکاروئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ!

کله چې کومه ستونزه پیدا شي د قوم __________ سره راغونډیږي.

ستونزې او __________ د جرګو له لارې او اریږي.

له جرګې څخه __________ ملاتړ کوي.

زموږ هېواد زیات __________ لري.

دواکسین __________ باید پاکه وي.

| غرونه، مشران، شخړې، افغانان ، ستن |
|---|

۳. لاندې مفردې او جمع کلمې په نښه کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ!

( سیندونه، ویاله، افغانان، مشر، ګلان، غوا )

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکو د مفرد او جمع نومونه وپېژندل؟
- زده کوونکي د مفرد او جمع نومونو تعریف کولی شي؟
- د ورکړل شویو مفرد او جمع نومونو څخه یې جملې جوړې کړای شوې؟

**کورنۍ دنده:**

په خپلو کتابچو کې شپږ مفرد نومونه له یاده ولیکئ او بیا یې د جمع په نومونو واړوئ!

# نهه د يرشم لوست
# نيكي كول

**موخه**: د متن لوستل، ليكل، د نيكي په مفهوم پوهېدل او په ورځينيو چارو کې يې عملي کول دي.

پوښتنې:
- ستاسو په فكر نيكي يعنى څه؟
- نيكي كول څه ګټه لري؟

يو انسان له خلكو سره په ژبه، لاس، او مال نيكي او مرسته كوي.

د ژبې په وسيله نيكي كول خلكو ته د ژبې له لارې لارښوونه ده.څه يې چې زده وي او ښه وي، هغه بل چاته ښودل او ويل دي. كه څوك لارښوونې ته اړ وي، په نرمو او خوږو خبرو ورته لارښوونه كوي. دلاس په وسيله نيكي او مرسته كول، مثلاً: د يوه ړوند لاس نيول او سمې لارې ته يې برابر ول دي او يا څوك ړوند يا كمزوری له سړک څخه بلې خوا ته تېر كړي. كه ديو چا بار دروند وي، ورسره يې يوسي.

كه څوک وږی يا لوڅ وي، تر خپلې وسې دې ورسره مرسته وشي. ښه زده كوونكي دغه ګټورې خبرې تل په پام كې نيسي او په ژوند كې پرې عمل كوي.

رحمان بابا وايي:

كر دګلو كړه چې سيمه دې ګلزار شي
اغزي مه كره په پښو كې به دې خار شي

كوهي مه كنه د بل سړي په لار كې
چېرې ستا به د كوهي په غاړه لار شي

## ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د متن د مطلب په اړه دې لنډ معلومات ورکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. بیا دې د متن د مطلب په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

٢. د لاندې چوکاټ له مفردو کلمو څخه په خپلو کتابچو کې د جمع کلمې جوړې کړئ.

| جمع | مفرد |
|---|---|
| ژبې | ژبه |
| | لاس |
| | مرسته |
| | لارښوونه |
| | سرک |

٣. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!

یو انسان له خلکو سره په ژبه ، لاس ، او مال نیکي او مرسته ________.

دژبې په وسیله خلکوته لارښووني ______________.

په لاس نیکي کول هغه دی، چې د یو ړوند لاس ______________.

که د یو چا بار درووند وي، ورسره یې ________________.

۴. د لاندې بیت مطلب په نثر ولیکئ!

کـر دګلـو کـړه چې سیمه دې ګلـزار شي

اغـزي مـه کره پـه پـښو کـې بـه دې خار شي

ارزونه:

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- د متن په مطلب پوه شول؟
- د نیکي کولو په اړه خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره ډکې کړلې؟
- دلوستل شوی بیت مطلب په نثر اړولی شي؟

## کورنۍ دنده:

د نیکي کولو متن په کور کې ولولئ. په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ چې باید له چا سره مرسته وشي.

# څلوېښتم لوست

## متلونه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د متل پېژندل په معنا او مفهوم یې پوهېدل او پخپل ځای یې کارول دي.

پوښتنې:

- تاسې متلونه اورېدلي دي؟
- څوک کولی شي متل ووايي؟
- د متل د کارولو ځای پېژنئ؟

متلونه له پخوا زمانې را په دې خوا زموږ په هېواد کې ډېر دود لري.
او زموږ هېواد وال یې په خپلو خبرو اترو کې د اړتيا په وخت کې کاروي.
په پښتو ژبه کې راز راز متلونه شته دي لکه لاندې متلونه:

- خپله ژبه هم کلا ده هم بلا.
- خپل عمل دلارې مل.
- څه چې کرې هغه به رېبې.
- ژرنده که د پلار ده هم په وارده.
- چې اوسې، په خوی به د هغو سې.
- له يو لاس نه ټک نه خېژي.
- په يوه ګل نه پسرلى کېږي.
- مارته په لستوڼي کې ځای مه ورکوه!

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- متلونه ولوله او د متل د مطلب په اړه معلومات ورکړه!
- زده کوونکي په ګروپونو وویشئ چې له یو بل سره د متلونو په اړه وغږیږي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. متن ولولئ او یوله بل سره د متل په هکله خبرې وکړئ. بیا دهری ډلې یو تن دې په وار سره د متل په هکله معلومات ورکړي.

٢. لاندې عبارتونه او متلونه په غور سره ولولئ! بیا متلونه په ګوته کړئ، وروسته یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

ستړګی په ښونه درنیږي.

د اټک پلار.

ځمکه هغه سوځي چې اورپرې بلیږي.

د هوسۍ مور.

درواغ د ایمان زیان دی.

اوښ په بډه نه وهل کیږي .

که نن پر ما سبا پرتا .

دریاب په لوټه نه خړیږي.

زموږ افغانستان.

د پښتو څلورم کتاب.

**ارزونه:**

- زده کوونکي د متل په معنا او مفهوم پوه شول؟
- دوی کولی شي چې متل له یاده ووایي؟
- په دې پوه شول چې متل باید سرې چېرې وکاروي؟

**کورنۍ دنده:**

متلونه له یاده زده کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ!

## يو څلوېښتم لوست

# د نوم ډولونه

## خاص نوم

| | | |
|---|---|---|
| خوشحال ختټک، | امير کروړ، | ننګرهار، |
| مزارشريف، | ابوريحان البيرونی، | باميان. |

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، په متن کې د خاص نوم پېژندل،اوپه لنډو جملو کې يې کارول دي.

پوښتنې:

- په پورتني چوکاټ کې څه ليکل شوي دي ؟ په هغو کې خاص نوم ښودلی شئ!
- ستا سو په فکر خاص نوم څه ډول نوم ته وايي؟

خاص نوم: هغه دی چې په يو خاص شخص او ځای باندې د لالت وکړي. لکه مزار شريف، احمد شاه بابا ، کابل. بلخ، پغمان

زموږ د ګران هېواد افغانستان مرکز کابل دی.

کابل ډېرې تاريخي او ښکلې ودانۍ لري لکه د دارالامان ماڼۍ، د بابرېڼ، د باغ بالا هوټل،د امير عبدالرحمن خان مقبره او نور.

د کابل شمال خواته د پروان ولايت، لوېديځ ته يې د وردګو او ميدان ولايت، جنوب خواته يې د لوګر ولايت او ختيځ ته يې د لغمان او ننګرهار ولايتونه پراته دي.

کابل ډېر ښوونځي او لوی پوهنتون لري چې زموږ نجونې او هلکان پکې زده کړه کوي همدا راز کابل ډېرې ښې مېوې لري چې منې يې له ډېر پخوا څخه شهرت لري.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د خاص نوم په اړه دې معلومات وړاندې او مثالونه دې پر تخته ولیکي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي.

٢. په لوستل شوي متن کې دې خاص نومونه په ګوته کړي. بیادې په تخته ولیکي.

٣. په لاندې جملو کې خاص نومونه په ګوته کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

افغانستان ډول ډول ځاروي لري. (افغانستان)

زموږ د ګران هېواد مرکز کابل نومیږي.

په ننګرهار کې د نارنجو ونې ډېرې دي.

د بابر په بڼ کې ښکلي او ښایسته ګلان کرل کیږي.

دکابل پوهنتون د لوړو زده کړو ځای دی.

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د خاص نوم په مفهوم او معنا پوه شول؟
- خاص نوم په کلمو او جملو کې کارولی شي؟
- په متن کې یې خاص نومونه په ګوته کړای شول؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پنځه خاص نومونه له یاده په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

# دوه څلوېښتم لوست

## وزرماتې مرغه

**موخه**: دمتن لوستل، ليکل او پر مرغانو باندې د زړه سوي په ارزښت پوهېدل دي.

پوښتنې:
- تاسې داسې څوک پېژنئ چې هغه په الوتونکو مرغانو باندې زړه سوی ولري؟
- فکر وکړئ چې له يو وزرماتې مرغه سره مخامخ شئ څه به وکړئ؟

يوه ورځ ښايسته ګل له خپلو ځوتولګيوالو سره يو باغ ته ولاړل چې هلته خپل درسونه ولولي. دوی ديوې ونې لاندې کېناستل او په درس لوستلو يې پيل وکړ.



په دې شېبه کې يې الوتونکي مرغان ليدل چې د ونو پر ښاخونو کېناستل. د باغ په يوه خوا کې يې وليدل چې يو مرغه د بوټو له پاسه پروت دی او الوتی نه شي. ښايسته ګل ورغی او مرغه يې ونيو ،وېې کوت چې يو وزر يې مات دی. اېمل پوښتنه وکړه: دا مرغه څه کوې؟ هغه ځواب ورکړ: کور ته يې وړم او کوښښ کوم چې وزر يې جوړ شي. اخک وويل: زه به يوه پنجره درکړم.

ښايسته ګل چې کور ته ولاړ مرغه يې خپلې مورته وښود. مورېې ترې پوښتنه وکړه: ولې دې کورته راوړ؟ ..... هغه ځواب ورکړ: مورجانې! دا مرغه ساتم چې وزريې جوړ شي. مور يې بيا ترې پوښتنه وکړه: پنجره دې له کومه پيدا کړه؟ ښايسته ګل ځواب ورکړ: له اخک څخه مې واخيستله.

ښايسته ګل به هره ورځ مرغه ته اوبه او دانه ورکوله. څو ورځې تېرې شوې. مرغه جوړ شو او داسې ښکارېده چې مرغه غواړي له پنجرې څخه ووزي. کله چې ښايسته ګل په دې پوه شو چې مرغه ښه جوړ شوی دی او الوتی شي، له ځان سره يې وويل: او س بايد دا مرغه خوشې کړم تر څو په آزاد ډول په هواکې والوزي. هغه د پنجرې ور خلاص کړ. مرغه يې خوشې کړ او والوت.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د لوست په مطلب دې خبرې وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. بیا دې یو تن په وار د لوست پر اصلي موضوع باندې نورو ته معلومات ورکړي.

۲. پوښتنې:

- که موږ یو الوتونکی مرغه ووینو چې وزر یې مات وي څه به وکړو؟
- ښایسته ګل د بوټو له پاسه څه شي ولید؟
- مرغه یې بیا چېرې یوړ؟
- د وزر ماتي مرغه له نیولو څخه د ښایسته ګل موخه څه وه؟
- موږ باید له مرغانو سره څنګه سلوک وکړو؟

۳. د لاندې چوکاټ له جمع کلمو څخه په خپلو کتابچو کې د مفرد کلمې جوړې کړئ.

| جمع | مفرد |
|---|---|
| درسونه | درس |
| ونې | |
| مرغان | |
| ښاخونه | |

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- د متن په اصلي مفهوم پوه شوي دي؟
- دلوستل شوی متن مفهوم په خپله ژبه خپلو ټولګیوالو ته ویلی شي؟
- له ورکړل شویو جمع کلمو څخه د مفرد کلمې جوړولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

لاندې کلمې په جملو کې وکاروئ!

(مرغه ـ آزاد ـ پنجره ـ باغ)

# درې څلوېښتم لوست

# د زغم ښیګڼې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او په زده کوونکو کې دزغم او حوصلې د ښیګڼو د پیاوړتیا روزنه ده.

پوښتنې:
- ویلی شئ د زغم معنا څه ده؟
- ستاسو په کورنۍ کې څوک دښه زغم او حوصلې خاوند دی؟
- زموږ پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د څه شي خاوند و؟

د بشریت ستر لارښوونکی حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په ژوند کې دخورا ښو اخلاقو درلودونکی او د بشپړې حوصلې خاوند و. لوی خدای (جل جلاله) ورته د صبر او زغم پراخه لوی زړه ورکړی و.
زموږ پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د ژوند د هر راز ستونزو په اوارولو کې له ډېرې مېړانې او عدالت څخه کار اخیسته.
وایي چې مبارک به کله چې دلمانځه له اداکولو له پاره د جومات په لور روان و د تللو په حال کې به یوې یهودۍ ښځې له بامه پر مبارک خځلې راغورځولې او د پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د ازار سبب به شوه، خو حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) به دا اذیت په ډېره سړه سینه زغمه او له صبر څخه به یې کار اخیسته دغه عمل ډېرې ورځې تکرار شو خو ناڅاپه دوه ورځې دا عمل ونه شو. حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) په دویمه ورځ په جومات کې پوښتنه وکړه چې هره ورځ یهودۍ ښځې پرده خځلې راغورځولې خو دا دوه ورځې دا کار نه دی شوی. کله چې رسول اکرم(صلی الله علیه وسلم) د علت پوښتنه وکړه، یوتن مبارک ته ځواب ورکړ چې هغه ښځه ناروغه ده. حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) دلمانځه له اداکولو څخه وروسته بیا دیهودۍ ښځې کورته ورغی او له هغې څخه یې د روغتیا پوښتنه وکړه. دا خبره یهودۍ ښځې ته د حیرانتیا وړ وه. هغې د رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) په صبر او حوصلې آفرین ووایه او په هماغه ورځ یې ایمان راوړ او مسلمانه شوه.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- د متن په مطلب دې خبرې وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. بیا دې یو یو تن په وار د متن مطلب نورو ته ووایي.

۲. پوښتنې:

- د زغم معنا څه ده؟
- د لوستل شوي متن څخه مو څه زده کړل؟
- د لاندې جملو تش ځایونه د چوکاټ په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچوکې ډک کړئ.

| خاوند ، وران، زغم، ایمان، مسلمانه ، اخیسته |
|---|

د بشریت ستر لارښود په ژوند کې د خورا ښو اخلاقو درلودونکی او د بشپړې حوصلې __________ و.

زموږ پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د ژوند د هر راز ستونزو په اوارولو کې له ډېرې مېړانې اوعدالت څخه کار __________.

وایې چې مبارک به کله چې دلمانځه د اداکولو له پاره جومات په لور __________ وو.

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) به دا اذیت په ډېره سړه سینه __________ .

حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) دلمانځه له اداکولو څخه وروسته بیا د یهودی ښځې کورته ورغی او د هغې څخه یې د __________ پوښتنه وکړه.

په هماغه ورځ یې __________ راوړ او __________شوه.

۳. په لاندې کلمو کې سمه کلمه په ګوته کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

| لارخود | لارښود | لارښوت |
|---|---|---|
| حوصلې | اوصلې | هوسلې |
| زغم | ځغم | ذغم |

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- د متن په مطلب پوه شوي دي؟
- د لوست په مطلب خبرې کولی شي؟
- نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره بشپړولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

لاندې کلمې په جملو کې وکاروئ!

زغم، حوصله،جومات

# څلور څلوېښتم لوست

# د ناروغۍ لیک

**موخه:** د ناروغۍ د لیک لیکل، لوستل او د ناروغۍ په وخت کې د ښوونځی ادارې ته یې استول دي.

پوښتنې:

- تاسو کوم وخت خدای مه کړه د ناروغۍ له امله د ښوونځي ادارې ته لیک استولی دی؟
- د ښوونځي ادارې ته دناروغۍ د لیک استولو څخه مو هدف څه دی؟

د رحمان بابا د ښوونځي مدیر صاحب!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

نن دیوې ناروغۍ له امله ښوونځي ته درتلای نه شم.

هیله ده چې ناسوب ونه شمېرل شم.

په درناوي.

نېټه ________________.

ملالۍ د خوشحال لور د څلورم الف د ټولګي زده کوونکې.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې د نارو غۍ لیک په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته د ناروغۍ لیک ګټې وښیي. او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې دناروغۍ لیک له یاده زده کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په وار سره د ناروغۍلیک په لوړ آواز ولولي. بیا دې زده کوونکي یو بل ته خطونه ولیکي.

۲. زده کوونکي دې د ناروغۍ لیک پاک سوتره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۳. پوښتنې:

- تاسې خدای مه کړه که ناروغه شئ د ښوونځي ادارې ته څه شی استوئ؟
- د ناروغۍ لیک له استولو څخه مو موخه څه ده؟
- په ناروغۍ لیک کې د نېټې لیکنه ولې ضرور ده؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي د ناروغۍ لیک لوستلی شي؟
- زده کوونکي په دې وپوهېدل چې د ناروغۍ لیک په کوم وخت کې لیکل کیږي؟
- زده کوونکي د ناروغۍ لیک له یاده لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې په ښکلې لیک سره یو د ناروغۍ لیک په خپل نوم ولیکي.

# پنځه څلوېښتم لوست

# داړتيا ليک

**موخه**: د اړتيا ليک ليکل، لوستل او د اړتيا په وخت کې ترې ګټه اخيستل دي.

پوښتنې:

- تاسې کله د ضروري کار له امله د ښوونځي ادارې ته رقعه ليکلې ده؟
- د ښوونځي ادارې ته داړتيا ليک استول څه ګټه لري؟ او ولې؟

د سيد جمال الدين افغان د ښوونځي ښاغلی مدير صاحب!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

نن د يوه ضروري کار له امله ښوونځي ته درتلای نه شم.

هيله ده چې ناسوب ونه شمېرل شم.

په درناوي.

نېټه ________________ .

اجمل د خوشحال زوی

د څلورم الف ټولګي زده کوونکی.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې د اړتیا لیک په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته د اړیتا لیک د لیکلو په اړه لنډ معلومات ورکړي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د اړتیا لیک له یاده زده کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره د اړتیا لیک په لوړ آواز ولولي.

٢. بیا دې د هر ګروپ زده کوونکي په وارسره د اړتیا لیک په اړه خبرې وکړي.

٣. زده کوونکي دې یو بل ته د اړتیا لیک املا ووایي.او خپلې غلطۍ دې یو د بل په مرسته اصلاح کړي.

۴. پوښتنې:

- تاسې ته که کوم کار پېښ شي د ښوونځي ادارې ته څه استوئ؟
- د اړتیا لیک استول د ښوونځي ادارې ته څه ګټه لري؟
- په اړتیا لیک کې نېټه لیکنه ولې مهم کار دی؟

**ارزونه:**

- زده کوونکي د ا ړتیا لیک لوستلی شي؟
- د اړتیا لیک د لیکلو په ارزښت پوه شول؟
- زده کوونکي کولی شي چې د اړتیا لیک د املا په توګه ولیکي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د اړتیا لیک ولیکي او په بله ورځ دې خپل ښوونکي ته ورښکاره کړي.

# شپږ شلوېښتم لوست

# څه چې وايې هغه به اورې

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، انګېزه په هکله د معلوماتو ورکول او په متن کې د فعلونو ور په ګوته کول دي.

پوښتنې:

- کله مو د سارا يا د غره د لمنې ترڅنګه په لوړ آواز چيغه وهلې ده؟
- تاسې بيرته څه اورېدلي دي؟ او ولې؟
- ستاسو په فکر بېرته آورېدل شوي غږ ته څه وايي؟



يوه ورځ اشرف د سېل له پاره د کلي د غره لمنې ته ورغی. هلته په لوبو اخته شو. ناڅاپه يې له مخې څخه يو مرغه والوت. اشرف مرغه پسې شور او غوغا وکړه. هر غږ چې د ده له خولې څخه راوت، هغه به يې بېرته اورېده. هېڅکله يې داسې پېښه نه وه ليدلې. ډېر حيران شو چې دا څوک د ده د آواز پېښنې کوي. اشرف غږ کړ: چې څوک يې؟ آواز يې واورېد چې څوک يې؟ اشرف په غوسه شو او په لوړ آواز يې وويل: ته ډېر بې عقل يې! ځواب يې واورېد چې ته ډېر بې عقل يې. د اشرف غوسه زياته شوه. په سختو خبرو يې پيل وکړ. آخر پوه شو چې هر څه وايي، ټکي په ټکي يې بېرته اوري. د دې له پاره چې وپوهيږي په لټولو يې پيل وکړ چې غږ کوونکی پيدا کړي. هر څومره چې وګرځېد هغه يې ونه مونده. په ډک زړه کورته راغی، پلار ته يې وويل: پلار جانه، نن په غره کې يوه هلک زما د آواز پېښنې کولې، سختې خبرې مې ورته وکړې. هغه هم همغسې سختې خبرې راته وکړې. هر څومره مې چې ولټاوه، پيدا مې نه کړ.

پلار يې چې د خپل زوی ټولې خبرې واورېدې داسې يې ورته وويل: د زړه سره! هر څه چې دې اورېدلي دي هغه ستا د خپل آواز غبرګون دی. چې بيرته تاته راګرځېدلي دي. په غرونو او داسې نورو ځايونو کې نور آوازونه نه وي. غږونه مخامخ ځي، بيا بېرته راګرځي او اورېدل کيږي. بيا يې دا شعر ورته وواية:

دا جهـان پـه شـان دغـره دی زموږ فـعـل دی آواز
چـې وايـو هـغـه آورو، هغه دم پـه هغـه راز

د آواز دغـه غبرګـون چې د جګو غرونو ترمنځ د تنګو درو پـه اړخونو کـې رامنځتـه کیږي د ښتنو په ځینو سیمو کې د انګۍ په نامه هم یادیږي دغـه غبرګـون پـه دغـه شان ځایونو کې موجودوي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- له متن څخه پر اصلي مطلب دې پوره رڼا واچوي.
- ښاغلی ښوونکی دې د متن د څو جملو املا شاګردانو ته ووايي.
- ښوونکی دې د فعل کلمې د متن څخه پیدا او د تختې پر مخ ولیکي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي.

٢. د هرګروپ څخه دې یو تن په وار سره د متن پراصلي مطلب نورو ته معلومات ورکړي.

٣. د لاندې جملو تش ځایونه دې په مناسبو کلمو سره ډک او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

یوه ورځ اشرف د سیل له پاره سارا ته ___________.

یو غره ته _________.

هلته په لوړو اخته ________.

ډېر حیران شو چې دا څوک د ده د آواز پیښې _______.

۴. لاندې معنا شوي لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروئ!

انګۍ ـ د غږ غبرګون ، کړنګار

پیښه ـ واقعه

غوسه ـ قار

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- دوی د متن په اصلي مطلب پوه شول او خبرې پرې کولی شي؟
- د جملو تش ځایونه یې په مناسبو کلمو ډک کړل؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لوست مطلب په خو کرښو کې ولیکي.

# اوه ځلوېښتم لوست

# افغانستان

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او زده کوونکي په دې وپوهيږي چې زموږ د هېواد څلورو خواوته کوم ... هېوادونه پراته دي.

پوښتني:

- ويلی شئ چې زموږ ګران هېوادافغانستان په کومه و چه ( قاره ) کې پروت دی؟
- څوک ويلی شي چې د افغانستان په څلور خواو کې کوم هېوا دونه پراته دي؟
- زموږ په هېواد کې کوم مليتونه اوسيږي؟ نومونه يې واخلئ؟

افغانستان زموږ هېواد دی او د آسيا په لويه وچه کې پروت دی. خلک ورته د آسيا زړه هم وايي. زموږ د هېواد شمال ته تاجکستان، ازبکستان، او ترکمنستان، جنوب او ختيځ ته يې پاکستان او لويديځ ته يې د ايران هېواد موقعيت لري. زموږ په هېواد کې ډېر قومونه او مليتونه ژوند کوي لکه پښتانه، تاجک، ازبک، هزاره، ترکمن



بلوچ،نورستانيان، پشه يان او داسې نور. دا ټول افغانان بلل کيږي.زموږ دبدن وينه د هېواد له اوبو، هوا، غلو، دانواو مېوو څخه جوړه شوې ده.دا هېواد پر موږ باندې د مور په شان حقونه لري. ځکه موږ ته يې داسې روزنه راکړې لکه څنګه چې خپلې مور روزلي يو.

ټول افغانان کولی شي د خپل هېواد په پراخه او ښايسته لمن کې په ډېره خوشحالۍ ژوند وکړي. موږ بايد د ژوند ترپايه پورې د خپل ګران هېواد د آبادۍ له پاره کوښښ وکړو، ترڅو زموږ هېواد همېشه ودان اوسمسور شي.

### ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې دلوست متن په لوړ آواز ولولي. نوي لغتونه دې پر تختــه وليکـي. لـه زده کوونکو څخه دې وغواړي چې په جملو کې يې وکاروي.
- د افغانستان په اړه لنډ معلومات دې ورکړي.
- له متن څخه دې ادوات په نښه کړي!
- له متن څخه دې په زده کوونکو باندې املا وليکي!

### د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې متن پـه مناسب آواز ولولي او بيـا دې دهرې ډلې څخه يـو تـن د ټولګي مخکې د افغانستان د ګاونډيو هېوادو نومونه په لوړ آواز ووايي.

٢. لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروئ او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

افغانستان، مليتونه، مور، هېواد، ودان.

٣. دلاندې جملودتشو ځايونو لـه پـاره مناسب ربطي تـوري او کلمـې پيدا او پـه خپلوکتـابچو کې يې وليکئ!

افغانستان زموږ هېواد دی. _________ د آسيا په لويه وچه کې پروت دي.

په دغه هېواد کې ډېر قومونه او ____ ژوند کوي.

زموږ د بدن وينه د ____ لـه _____، هوا، غلو، دانو او مېوو څخه جوړه شوې ده.

### ارزونه:

- زده کوونکي د لوست متن سم لوستلی شي؟
- نوي لغتونه په جملو کې کارولی شي؟
- د افغانستان په هکله يې معلومات ترلاسه کړل؟
- د افغانسـتان ګاونـډي هېوادونـه يــې وپېژنـدل او هغــه يــې پــه خپلوکتابچو کې وليکل؟

### کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې د افغانستان په هکله څو مناسبې جملې و ليکئ!

# اته څلویښتم لوست

## عام نوم

| قلم، کتاب، مور، هېواد، میوې، ونې، تیرې، ګلان |
|---|

**موخه**: دمتن لوستل، لیکل د عام نوم پېژندل، او په لنډو جملو کې یې کارول دي.

پوښتنې:
- په چوکاټ کې څه لیکل شوي دي؟
- ستاسو په نظر عام نوم څه ډول نوم ته وایي؟

عام نوم: هغې کلمې ته وايي چې په خپلوډېرو همجنسو نومونو دلالت وکړي.

د ډېرو سکاره یوه تور رنګې ماده ده چې زموږ د ګران هېواد په ډېرو ولایتونو لکه پروان، بامیان، هرات، بغلان او بدخشان کې پیدا کېږي.

زموږ ځینې خلک په ژمي کې د کورونو په تودولو کې دډېرو له سکرو نه ګټه اخلي. ځکه چې دلرګیو تر سکرو د ډبرو دسکروتودوخه ډېره زیاته ده.

او په فابریکو کې یې د سونګ د توکو په څېر کاروي.سکاره په دوه ډوله دی یو ډول یې د ډبرو سکاره دي او بل ډول یې دلرګیو سکاره دي د لرګیو سکاره د لرګیو له سوځولو څخه لاس ته راوړي. او د ډبرو سکاره په اورغورځوونکو غرونو کې په کاني ډول موجود دي.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې په لوستل شوي متن کې عام نومونه پر تخته وليکي لکه ډېرې، ګلان او نور.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. بيا دې يو تن د عام نوم په اړه څه چې پوهيږي خبرې وکړي او يو مثال دې په تخته وليکي.

٢. زده کوونکي دې عام نومونه په متن کې په نښه کړي. بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

٣. په خپلو کتابچو کې لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروئ!

( سکاره، ځمکه، ونې، ځنګلونه، تيږې، هېواد، ژمی )

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د متن پراصلي مطلب پوه شوي دي؟
- د عام نوم پر تعريف باندې پوه شول؟
- د عام نوم په هکله نور مثالونه ويلی شي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو عام نومونه له ياده وليکي او بيا دې په جملو کې وکاروي.

# نهه څلوېښتم لوست

# کليوالي ژوند

**موخه**: د متن لوستل، ليکل ، او دکليوالي ژوند په اړه معلومات ورکول دي.

پوښتنې:

- دکليوال په معنا پوهيږئ ؟
- چاته موږ کليوال ويلی شو؟
- له کليوالو سره څنګه سلوک په کار دی؟

يوه ورځ ښوونکي له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړه دکليوال په معناپوهيږئ ؟

بريالي تر ټولو دمخه لاس پورته کړ، ويې ويل: هو، په هغه کلي کې چی موږ ژوند کو و، شاوخوا ګاونډيان موکليوال بلل کيږي. ښوونکي وويل: هو، بچيانو موږ ټول په کليوکې او سېږو.شاوخوا ګاونډ يان مو، خپل دي اوکه پردي، پر موږ دګاونډيتوب يوشان حقونه لري.



څنګه چی خپلې کورنۍ ته دخدمت کولو مسؤليت لرو دغه راز خپلوکليوالو ته هم مسؤل يو چې ور سره مينه ولرو، دهغوی ستونزو ته ځان ورسوو او هغوی سره مرسته وکړو . موږ بايد دخپلو کليوالو په غم او ښادۍ کې ځان شريک و ګڼو، اوله هغوی سره په خوشحالۍ ، وروري او نېکمرغۍ ژوند وکړو.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي .
- د کليوالي ژوند په اړه دې معلومات ورکړې .

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. بيا دې زده کوونکي د کليوالي ژوند په اړه خبرې وکړي.
۲. لاندې نيمګړې جملې په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ!
۳. شاوخوا ګاونډيان مو کليوال ____________.

ښوونکي وويل: هو ، بچيانو موږ ټول په کليو کې __________.

موږ بايد د خپلو کليوالو په غم او ښادۍ کې ځان شريک _________.

له هغوی سره په خوشحالۍ ، ورورۍ او نيکمرغۍ ژوند _________.

۴. د لاندې چوکاټ په څير په خپلو کتابچو کې چوکاټ جوړ کړئ او د جمعې کلمې په مفردو کلمو واړوئ!

| جمع | مفرد |
|---|---|
| ګاونډيان | ګاونډی |
| کلي | |
| حقونه | |
| بچيان | |

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- د کليوالي ژوند په اړه يې پوهه ترلاسه شوه؟
- زده کوونکي د کليوالي ژوند په اړه خبرې کولی شي؟
- نيمګړې جملې يې په مناسبو کلموسره ډکې کړلې؟
- د جمع کلمې يې په مفردو کلمو واړولې؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کليوالی ژوند په اړه څو جملې وليکي.

# پنځوسم لوست

# بشري ټولنه





**موخه**: د متن لوستل، ليکل په ټولنه کې دګډې مرستې په ارزښت اوګټو پوهېدل او د بشري ټولنې په اړه د معلوماتو ورکول دي.



پوښتنې:

- ويلی شئ چې ټولنه څه ته وايي؟
- مور، ولې ډاکټر، ښوونکي، خټګر، ترکاڼ، او داسې نورو ته اړتيا لرو؟

ديـوې ټـولنې وګـړي پـه يـوازې ځـان د ژونـد ټـولې اړتيـاوې نـه شـي پـوره کـولی، ځکه نو يو دبـل مرسـتې او همکـارۍ تـه ډېـره اړتيـالري. ټـول هغـه وګړي چې پـه يـوه ځـای کـې سـره ژونـد کـوي، يـوه ټولنـه جوړ وي، چـې د وګـړنيـزې ټـولـنـې پـه نـوم ياد يږي. په وګړنيزه ټولنه کې ټـول خلـک دښـه ژونـد کـولـو لـه پـاره زيـار کـاږي لکـه ښـوونکي ، ډاکتـران ،انجنيـران ، سـوداګران ، بزګـران، خټګـران، ترکـاڼ، ګنډونکي او داسې نور په ګډه يو بل ته کار کوي او يو دبـل اړتيـاوې ور پـوره کـوي. دمثال په توګه که چېرې خټګر نه وي ترکاڼ کار نه شي کولی. دا دواړه بيا ډاکتـر تـه اړ دي. همدا راز دوی بيا ګنډ ونکي ته اړ دي. په دې توګه يودبل اړتيا لېرې کوي. هر څومره چې د يوې ټولنې و ګړي يو موټی، يوله بل سره خواخوږي ولري هغومره ټولنـه پرمختګ کوي دښه او هوسا ژوند له پاره ورتـه اسانتيا وې برابر يږي داسې ټولنه بيا په خپله هم پـه خوشحالۍ او نيکمرغـۍ سره ژونـد کـوي او نور وتـه يې هم ګټـه رسيږي.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې دلوست متن په لوړ آواز ولولي.
- په مطلب دې پوره خبرې و کړي او نوې کلمې دې معنا کړي.
- مفردې کلمې دې پر تخته ولیکي او زده کوونکي دې دکلمو جمع په خپلو کتابچو کې ولیکي

## د زده کوونکو فعالیتونه:

١. د هرګروپ زده کوونکي دې دکتاب له مخې متن ولولي.
٢. په خپلو کتابچو کې دې ولیکي چې دا لاندې هر وګړی څه دنده لري؟
خیاط- ډاکټر- بزګر- ښوونکی -ګنډونکی -پولیس - پښې - ترکاڼ
٣. دلاندې پوښتنې سم ځواب په نښه کړئ او بیا یې په خپلو کتابچوکې ولیکئ!
وګړنیزه ټولنه څه ته وایي ؟
هغې ټولنې ته وایې چې خلک یې یو له بل سره راشه درشه ولري.
هغې ټولنې ته وایي چې انسان په یوائې توګه ژوند وکړي.
هغې ټولنې ته وایي چې ټول وګړي په یوه ځای کې ګډ ژوند وکړي.
۴. لغتونه او معنا ګانې
زیــار ، کوښښ
وګړي ، خلک
هوسا ، آرام

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی اولیکلی شي؟
- زده کوونکي د متن په مطلب باندې پوه شوي او خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو و ګړنیزه ټولنه و پیژنده؟
- زده کوونکود ګډې مرستې دکاراو زیار سره مینه پیداکړه او په ازرښت یې پوه شول؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلوکتابچوکې ولیکي او په لنډ وجملوکې دې وکاروي.
ټولنه - وګړي - همکاري - زیار

# يو پنځوسم لوست

## ضمير

هغه، دوی، زه، موږ، هغوی، دی، هغې

**موخه**: د متن لوستل، ليكل، دضمير په معنا اومفهوم پوهېدل او په جملو کې يې کارول دي.

پوښتنې:

- په پورتني چوكاټ كې څه ليكل شوي دي ؟
- ويلی شئ چې ضمير څه ډول كلمې ته وايي؟

**ضمير**: هغې كلمې ته وايي چې د نوم په ځای كارول كيږي لكه هغه ، زه، ما ، تا ، ځوک، چا .

## تږوكه

دسپوږمۍ مور سپوږمۍ ووهله او ورته يې وويل، چې ولې دې ګل غوټۍ ووهله. هغه ستا كو چنۍ خورده ته بايد له ځانه كو چني ماشومان و نه وهې . هغې چې ژړل، په ژړه غوني او ازيې ورته وويل چې مورجانې زه خوهم ترتا كمكۍ يم نوته ولې ما وهې .

### ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي .
- ښوونکی دې دضمیر په اړه معلومات ورکړي .
- ښوونکی دې د ټوکی څخه د ضمیرکلمې پر تخته ولیکي لکه هغه.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي.

۲. د لاندې درکړل شویو ضمیر و نو څخه په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړئ !

**هغه ، زه ، ته ، ما ، تا ، څوک، هغې ، چا .**

۳. لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو ضمیرونو باندې بشپړې کړئ!

_______ څوکۍ زماده.

_______ کتاب لولم.

_______ پرون چېرې تللی وې؟

_______ خپله کورنۍ دنده خلاصه کړه.

_______ چې زموږ په شا وخواکې اوسیږي ، ګاونډي بلل کیږي.

_______ دجرګې له پر یکړو څخه سرغړ ونه نه کوي.

_______ ته په سپکه ستر ګه مه ګورئ!

### ارزونه:

- زده کوونکو ضمیر وپېژانده ؟ اوپه دې پوه شول چې ضمیر دنوم په ځای کارول کیږي.
- دضمیر په اړه جملې جوړولی شي؟
- پورتني ضمیرونه یې په جملوکی و کارولی شول ؟
- ضمیرونه یې په نیمګړو جملوکې سم و کارولی شول؟

### کورنۍ دنده:

لاندې ضمیرونه په جملو کې وکاروئ!

(زه ، څوک، هیڅوک ، تا ، چا ، هغه، هغی، هغوی.

# دوه پنځوسم لوست

# صفت

| ښه - ښکلې | ښايسته - پاک |
| --- | --- |
| خورا - ډېر | خواږه - هوښيار |
| سپين - شتمن | |

**موخه**: دصفت په معنا پوهېدل، په متن کې يې پېژندل او په جملوکې يې کارول دي.

پوښتنې:

- په پورتنې چوکاټ کې څه ليکل شوي دي؟
- ستاسوپه نظر صفت څه ډول کلمې ته وايي؟

صفت هغې کلمې ته وايي چې د نوم حالت او څرنګوالی يې له زمانی په پام کی نيولو سره بيان کړي، او څو ډوله دي. عادی صفت ، عالی صفت، اضافی صفت ،نسبتي صفت، اشاري صفت، عددي صفت.

هيله مې ده چې ښه ښوونکی شمه
لوړ وفکر ونو هڅوونکی شمه
هيله مې ده چې ماشومان و روزم
دخپل هېواد ښکلي زلميان و روزم
داسی زلمی چې وي په پوهې سمبال
دپوهې بڼ ته بلبلان و روزم
پتمني نجوني مې د زړه هيلې دي
دملالۍ په څېر انسان وروزم
نژنده غواړم ښه ښوونکی شمه
لوړوفکر ونو هڅوونکی شمه

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- دصفت په اړه دې د زده کوونکو دسويې په پام کې نيولو سره لنډ معلومات له مثالو نو سره وړاندې کړي .
- د لوستل شوي شعر څخه دې د (صفت) کلمې په تخته وليکي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکی دې په وار سره شعر په لوړ آواز ولولي.

٢. د هر ګروپ زده کوونکي دې په وار سره د صفت کلمه تعريف کړي او بيا دې لاندې صفتونه په لنډ وجملوکې وکاروي.

(ښه، ښکلی ، ښايسته، پاک، خورا ،ډېر، هوښيار، سپين ، پوه).

لکه ښه زده کوونکی د خپل ښوونکي لارښوونې ته غوږ نيسي.

٣. له چوکاټ څخه مناسبې کلمې و ټاکئ اوبيا يې په کتابچو کې دجملو په تشوځايونو کې وکاروئ.

| ښه، ښکلی ، پوهه |
|---|
| پاک ، خورا |
| ډېر، خواږه |
| هوښيار ، شين ، |

زموږ هېواد _____ ختيځي لري.

زه خپل بدن ____ ساتم.

_____ زده کوونکي خپل وخت خوشې نه تېروي .

په بڼ کې _____ ګلان ډېروي.

هرڅوک چې ډېر درس ووايي _____ ترلاسه کوي.

زموږ ګران هېواد ________ سيندونه لري.

زما......... رنګ خوښيږي.

زما ورور ډېر_______ هلک دی.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي؟
- دصفت په معنا او مفهوم پوه شول؟
- په لوستل شوي شعرکې دصفت کلمې په ګوته کولی شي؟
- دصفت کلمې په جملوکې کارولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

لاندې دصفت کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ!

ښه ، پاکي ، ښايسته ، ډېر، خواږه ، هوښيار

# درې پنځوسم لوست

# مبتدا اوخبر

**موخه**: د متن لوستل ، ليکل، دمبتدا او خبر په هکله معلومات او په جملو کې د مبتدا او خبر پېژندل دي.



پوښتنې:

- مبتدا څه ته وايي؟
- خبر د جملې څه ډول برخه ده؟

مبتدا: مبتدا دجملی هغه برخه ده چې دحکم نسبت ورته شوی وي .
خبر: دجملی هغه برخه ده چې مبتدا ته يې نسبت شوی وي. يا په بله وينا د خبرمفهوم دمبتدا صفت ګرځي.

لاندې مثالو نه وګورئ!

داکتاب د څلورم ټولګي دی.

تجزيه: (داکتاب) مبتدا دی، ځکه د خبرنسبت ورته شوی دی او (څلورم ټولګی) خبر دی، ځکه مبتدا ته يې نسبت شوی دی.

توريالی ولاړ دی.

(توريالی) مبتدا دی ځکه چې (ولاړ والی ) چی د خبرمفهوم دی نسبت ورته شوی او (ولاړدی) خبردی.

ښوونکي ته لارښوونه:

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي.
- ښوونکی دې داسې نورې جملې چې د مبتدا او خبر څخه جوړې شوې وي. د تختې پرمخ ولیکي او په هغو کې دې مبتدا او خبر زده کوونکو ته ور په ګوته کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي.

۲. زده کوونکي دې د مبتدا اوخبر تعریفونه په یاد زده کړي او بیا دې د ټولګي په مخ کې نورو زده کوونکو ته ووایي.

۳. لاندې متلونه ولولئ او بیا پکې مبتدا او خبر په ګوته کړئ!

انسان تابع د احسان دی. (انسان مبتدا) (احسان خبر)

په یوه ګل نه پسرلی کیږي.

د د رواغو مزل لنډ دی.

خپل عمل دلارې مل

خپله ژبه هم کلا ده هم بلا.

ارزونه:

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي دمبتدا او خبر په معنا او مفهوم پوه شوي؟
- دوی کولی شي چې د مبتدا او خبر کلمې په نورو جملو کې پیدا کړي؟
- په ورکړل شویو متلونو کې یې مبتدا او خبر په ګوته کړل؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو جملې ولیکي او بیا دې مبتدا اوخبر په کې په نښه کړي.

# څلور پنځوسم لوست

## بې زحمته راحت نشته





**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د زيار اود زحمت په ارزښت او ګټو پوهېدل اوپه متن کې دصفت کلمې په نښه کول دي.

پوښتنې:

- هغه کسان چې خپل ژوند بې کاره او خوشې تېروي ژوند به يې څه ډول وي؟
- څوک چې خپل وخت په کارا وزيار سره تېروی کومې ګټې ترلاسه کوي؟

زمونږ په کلي کې يو ځوان و. کاريې نه کاوه او ورځ به يې په لټۍ تېروله. هر وخت به يې له کليوالو څخه غلې، دانې او پيسې په پور غوښتلې. په دې توګه به يې له خپلې کورنۍ سره ګوزاره کوله. يوه ورځ هغه دپوردا خېستلو په خاطر هرې خواته ډېر وګرځېد. خوهېچا پور ورنه کړ. له ځان سره يې وويل چې دمحمود پلار خويو شتمن سړی دی هغه ته به ورشم او پور به ورڅخه وغواړم. ځوان ورغی خپلې ستونزې يې ورته وويلې. هغه چې دده له بې کارۍ نه خبرو، ورته يې وويل: يوه خبره درته کوم، که ويې منې، ځوان هلک ورته وويل: منم يې، څه را ته وايې؟

سړي ورته وويل: زما پنځه جريبه للمي ځمکه ده، هغه وکره. چې حاصل يې وکړ، زياته برخه به يې تاته درکړم. ځوان دمحمود دپلار په خبره ډېر خوښ شو. سم دلاسه يې ورته کولبه و غو ښته اود ځمکې په اړولويې پيل وکړ. وروسته يې په ځمکه کې دغنمو تخم وکرلو. ښه بارانونه وشول، غنمو وده وکړه چې پا خه شول هغه يې وريبل او دميده کېدو او پاکولو وروسته يې بياد خپلې برخې د اخيستلو غوښتنه وکړه. دمحمود پلار د ځوان برخه ورکړه او بيايې داسې ورته وويل: دا ځمکه هر وخت کره! ځوان چې دخپل کار او زيار پايله ولېده نو وپوهېده چې رښتياهم بې زحمته را حت نشته.

**ښوونکي ته لارښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي ، بيا دې د بې کارۍ په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي و هڅوي چې د بې کارۍ د بدې پايلې په اړه نورو ته خبرې وکړي.

**د زده کوونکو فعاليتونه:**

۱. زده کوونکي دې په وارسره متن په لوړ آواز ولولي، بيا دې دهرګروپ يوتن دټولګي مخې ته راشي او دمتن په مطلب دې خبرې وکړي.

۲. زده کوونکي دې په لوستل شوي متن کې دصفت کلمې په ګوته کړي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

۳. په خپلو کتابچو کې لاندې نيمګړې جملې په مناسبو کلموسره بشپړې کړئ!

زمونږ په کلي کې يو ځوان ___________.

هروخت به يې له کليوالو څخه غلې، داني اوپيسې په پور _____________.

يوه ورځ _______ دپور داخيستلوپه خاطر هرې خوا ته ډېر _______.

دمحمود پلار خو يو _______ سړی دی هغه ته به ورشم او پوربه ورځخه _________.

يوه خبره درته کوم ، که ويې ___________.

ځوان هلک ورته وويل: منم يې څه را ته _________؟

زماپنځه جريبه للمي ځمکه ده ، هغه وکره چې حاصل يې وکړ، زياته برخه به يې تاته _______.

ځوان د محمود د پلار په خبره ډېر_____ شو.

ځوان چې دخپل کار او _____ پايله وليده ، نو وپوهېدو چې رښتيا هم بې زحمته راحت _____.

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
- زده کوونکي دمتن په مطلب پوه شوي؟
- دمتن په مطلب خبرې کولی شي؟
- زده کوونکو په متن کې دصفت کلمې په ګوته کړای شوې؟
- ورکړل شوې نيمګړې جملې يې په مناسبو کلمو ډکې کړی شوی؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې دغه کلمې په جملوکې وکاروي: (کاراو زيار ، بې کاري ، راحت ، پور)

# پنځه پنځوسم لوست

## عدد

لومړی- دویم – څلورم – اندازه – برخه

**موخه**: زده کوونکي دې متن ولولي اوويې ليکي، عدد وپېژني او په جملوکې يې وکارولی شي.

پوښتنې:

- په پورتني چوکاټ کې څه ليکل شوي دي؟
- ستاسو په نظر عدد څه ډول کلمې ته وايي؟

عدد: هغې کلمې ته وايي چې ديوه شي اندازه او درجه وښيي.

پرون د بريالي پلار د مواد و د اخيستو له پاره بازارته تللی و . هغه پنځوس ۵۰ کيلواوړه دبرش ۳۰ کيلووريجې ، لس ۱۰ کيلو غوړي او اوه ۷، کيلو بوره واخيسته. سربېره پردې يې ۴ کتابچې او دوه دانې قلمونه دبريالي له پاره او ۴ کتابچې او دوه قلمونه يې د ملالۍ له پاره هم واخيستل. کله چې هغه کورته راغی لوريې وويل: پلار جانه! د کور سودا خو دې راوړه خو په دې پوه شه چې زه قلم او کتابچې هم نه لرم . پلاريې په خنداشو او ويې ويل: لو رجانې د اندېښنې خبره نه ده ما څو کتابچې او څوداني قلمونه هم له ځان سره را وړي دي چې دوه قلمونه او څلور کتابچې به ستاا و دو ه قلمونه او څلور کتابچې به ستا د ورور شي. خوراو ورور دواړو دپلار نه کتابچې او قلمونه واخيستل او له هغه څخه يې ډېره مننه وکړه.

**ښوونکي ته لار ښوونه:**

- ښوونکی دې متن په لوړ آواز ولولي. بيادې دعدد په اړه معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې دعدد مثالو نه په تخته وليکي لکه:
  لس کتابچې ، دوه قلمونه، پنځه ګېلاسونه، اوه کیلو بوره ، دېرش کیلو وريجې .
  اوبيادې په زده کوونکو عدد په نښه کړي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ آواز ولولي. دعدد دمعنا او مفهوم په اړه يو دبل سره خبرې وکړي او بيا دې د هر ګروپ يو تن د عدد کلمې تعريف له ياده ووايي او مثال دې پر تخته وليکي.

٢. لاندې جملې دې ولولي او بيا دی په کې عدد په ګوته کړي.

زه په څلورم ټولګي کې درس وايم.
هغوی پرون شپږ ( ٢ ) دانې قلمونه واخيستل.
محمود دوه ورځې مخکې چېرته ولاړ؟
دغه اته (٨ ) دانې کتا بونه د هغه دي ؟

٣. لاندې عدد ونه په مناسبو جملوکې وکاروئ.
(٨-٢-٧-۵-٩-)

**ارزونه:**

- زده کوونکي متن لوستلی شي ؟
- دعدد په معنااو مفهوم پوه شول ؟
- دعدد په اړه نورو ته معلومات ورکولی شي ؟
- عدد ونه په مناسبو جملوکی کارولی شي ؟
- په متن کې عدد ونه په ګوته کولای شي.؟

**کورنی دنده:**

لاندې نيمګړې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو عددونو بشپړې کړئ!

د يو لاس .......... ګوتې وي.
د انسان ........... سترګې وي.
د حيوان .......... پښې وي.
د ماښام لمونځ ........ رکعته دی.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان له تانه شم قربان
ته وينه دافغان ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد وطنه ته شې ښاد
مونږه سربښندو په تا اوساتو دې آزاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مې ګور ته پلارې هم مې مور
ته زړه دآسيا او زما دسترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا او تاج يې ديما
ځاريږمه له تا افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعین مرستیال